| ۱-۲ د ښوونکی د لوست ورکولو کړنې | د زده کوونکو د زده کولو کړنې | وخت په دقیقو |
|---|---|---|
| – ښوونکی کتاب ته په پاملرنې سره د ډبرنیو وسایلو د انځور په اړوند پوښتنې رامنځ ته کوي.<br>– د هڅونې د رامنځ ته کولو په موخه د پخوانیو انسانانو د ژوند یو شمیر انځورونه ښیي.<br>– په پای کې له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي او هغوی ته ځوابونه وایي. | – زده کـوونکي پوښـتنو تـه ځـواب وايي.<br>– زده کـوونکي د لوسـت د مـتن او انځور په هکله پوښتنې کوي او یـو له بله سره خبرې اترې کوي. | ۳۵ دقیقې |

## ۷- د لوست د متن پوښتنو ته ځواب:

– د ډبرې دپیر (عصر) انسانانو د کارتول وسایل له ډبرې څخه جوړول او په تیره اور لګوونکې ډبره یې ډیره کاروله.

– د برونزفلز: یو کیمیاوي ترکیب دی چې له مس او قلعي څخه جوړ شوی دی.

– تاریخي پیر په تولیزه توګه په لومړنیو، منځنیو، نویو او معاصرو پیریو ویشل شوی دی.

## ۸- د ښوونکی لپاره اضافی معلومات

انسانانو له زرګونو کلونو را په دیخوا د ځمکې د کرې پر مخ ژوند کړی دی. له ویش پرته په دغـې اوږدې دورې پوهیدل ستونزمن کار دی، نو له دې امله دغه دوره په دوو برخو ویشلې ده. چې د تاریخ د مخه او تاریخي دورو په نامه یادیږي. لرغون پیژندونکو د ماقبل التاریخ دوره په درې برخو ویشلې چې د ډبرې په عصر Stonage د برونزو عصر Bronsage او د اوسپنې په عصر Ironage یې یادوي چې دغه هر عصر ځانګړي مشخصات لري. د ډبرې په عصر کې تول وسایل له ډبرې څخه جوړیدل لکه: د برونزو په عصر کې که څه هم چې ډبرینووسایلو څخه کار اخیستل کیده، خو د دې ترڅنګه برونزو پـه کـورکې د کـار وړ د بیلابیلـو وسـایلو پـه جوړولـو کـې دود درلـود د اوسپنې په عصر کې چې له لومړنیو مدنیتو نو سره سمون خوري، د تولید وسایل له اوسپنې څخه جوړیدل. تاریخي دورې په لومړنیو پیریو، منځنیو پیریو، نویو پیریو او معاصرو پیریو ویشل شوي ده چې دغه ویش په تـولیزه توګـه د اروپا په تاریخ کې رواج لري.

سرچینې:

۱. *د لرغونپوهنې مبادي، رسول باوري.*

۲. *د تاریخ سیر، ګوردن چایلد.*

**د (٤) لوست د تدریس لارښود پلان**

**د تدریس وخت (یو ساعت)**

**مضمون: تاریخ**

| **د مطالبو سرلیکونه** | **د مطالبو شرح** | |
|---|---|---|
| **۱- د لوست موضوع** | د تاریخ د سنواتو تبدیلي | |
| **۲- ښوونيزې موخې: (پوهنيزې، مهارتي او ذهنيتي)** | له زده کوونکو څخه هيله کيږي چې د لوست په پای کې لاندې موخو ته لاس رسی ومومي.<br>– زده کوونکي باید په هیواد کې له معمولو ډول ډول سنو سره اشنا شي.<br>– د سنو د کارونې په مواردو باید پوه شي.<br>– له شمسي نه په میلادي او له میلادي نه په شمسي سنواتو باندې د تبدیلیدو لارې چارې باید زده کړي.<br>– د حضرت رسول اکرم (ص) د هجرت له تاریخ سره دې چې د مسلمانانو د تاریخ پیل دې زده کوونکي بلد شي. | |
| **۳- د لوست ورکولو لارې چارې** | فعال تدریس | |
| **۴- د لوست ورکولو اړين توکي** | تخته، درسي کتاب، انځورونه او د افغانستان نقشه | |
| **۵- د ارزښت موندنې چلند** | په تحريری او تقريری توګه | وخت په دقيقو |
| **۶- لومړنی کړنې** | ښوونکی سلام اچوي او د زده کوونکو د حال پوښتنه کوي.<br>ښوونکی زده کوونکوته خپله تذکره ښيي او پوښتنه کوي چې داخه شی دی؟ | ۱۰ دقيقې |

| ۱- ۲ د ښوونکي د لوست ورکولو کړنې | د زده کوونکو د زده کولو کړنې | وخت په دقیقو |
|---|---|---|
| – ښوونکی له څو زده کوونکو څخه د هغوی د عمر پوښتنه کوي.<br>– ښوونکی د زده کوونکو او خپل ژوند تـوپیر په تخته باندې لیکي.<br>– ښوونکی د خپل پیدایښت کال له هجري شمسي نه په زیږدیز یا میلادی کال بدلوي او د ټولګي پر تخته یې لیکي او زده کوونکو ته هم همدا دنده ورکوي.<br>– ښوونکی د زده کوونکو نه پوښتنې کوي. | – زده کوونکي ځواب ورکوي<br>– زده کوونکي یادښت نیسي<br>– زده کوونکي صنفي دنده لیکـي او اجرا کوي یې.<br>– زده کوونکي د لوست د مهمو ټکو په اړه له ښوونکي نه پوښتنې کوي.<br>– زده کـوونکي د خپـل ښـوونکي پوښـتنو تـه غـوږ نیسـي اوځـواب ورکوي. | ۳۵ دقیقې |

**۷- د لوست د متن پوښتنو ته ځواب**: **پوښتنو ته ځوابونه د لوست په متن کې ورکړل شوي دي.**

**۸- د ښوونکی لپاره پوهاوی: (اضافی معلومات)**

تاریخ دوې معناوې لري. لومړی د زماني په معنا لکه: وروسته له غرمې درې بجې او یـا ورځ، میاشـت او کـال او دویم د هغو پیښو په معنی چې په ځانګړي مهال او ځانګړو ځایونو کې پیښې شوي دي. د وخت فهم او درک په تاریخ پوهنه کې له بنسټیز اهمیت څخه برخمن دی. په نړۍ کې بیلابیلې سنې او نیټې معمـولې دي چې لـه ټولـو مهمې یې هجري شمسي، هجري قمري او میلادي (زیږدیز) دي. دغه سنې او نیټې بیلابیلې مبداء لري او د استعمال موارد یې هم په سیمو کې بېلابېـل دي. هجـري شمسـي پـه افغانسـتان، ایـران، تاجکسـتان او نـورو هېوادونـو کـې کارږول کیږي. هجري قمري په عربستان، یمن او نـورو هېوادونـو کـې رواج لـري او لـه مـیلادي سـنې څخـه پـه اروپایي، امریکایي او ځینو نورو بر اعظمونو کې په رسمي توګه کار اخیستل کیږي. په درسـي کتـاب کـې مـو د سنو دوه ډوله تبدیلي ولوستله د هجري قمري سنې تبدیلي په میلادي سنې په لاندې ډول ده:

د هجري قمري سنې تبدیلي په میلادي کال. د پام وړ هجري قمري کال ۱۳۵۸ دی.

۱) $٦٢٢+\frac{32}{33}\times1358$

۲) $٦٢٢+\frac{32\times1358}{33}$

۳) ٦٢٢+۱۳۱٦.۸= ۱۹۳۸+۱=۱۹۳۹

*د معلوماتو د زیاتوالي لپاره سرچینې:*


۱. *تاریخ او تاریخ لیکنه په افغانستان کې: شاه محمود محمود.*
۲. *تقویمونه او کلیزې: عبدالوکیل پوپلزی.*
۳. *د اسلام تاریخ: پوهاند میر حسین شاه*

**د (۵) لوست د تدریس لارښود پلان**

**د تدریس وخت (یو ساعت)**

**مضمون: تاریخ**

| **د مطالبو سرلیکونه** | **د مطالبو شرح** | |
|---|---|---|
| **۱- د لوست موضوع** | آیا د افغانستان د پنځه زره کلن تاریخ له پیلامې خبر یاست؟ | |
| **۲- ښوونیزې موخې: (پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي)** | له زده کوونکو څخه هیله کیږي چې د لوست په پای کې لاندې موخو ته لاس رسی ومومي.<br>– زده کوونکي دې د افغانستان په پنځه زره کلن تاریخ باوري شي.<br>– زده کوونکي دې د افغانستان د پنځه زره کلن تاریخ له اسنادو سره آشنا شي.<br>– زده کوونکي دې د افغانستان د پنځه زره کلن تاریخ د اثارو له موقعیت سره آشنا او مینه دې ور سره وښیي. | |
| **۳- د لوست ورکولو لارې چارې** | فعال تدریس | |
| **۴- د لوست ورکولو اړین توکي** | کتاب، تخته، د افغانستان نقشه او انځورونه | |
| **۵- د ارزښت موندنې چلند** | په تحریری او تقریری توګه | وخت په دقیقو |
| **۲- لومړنی کړنې** | ښوونکی سلام اچوي او د زده کوونکو د حال پوښتنه کوي.<br>او بیا د هڅونې په رامنځته کولو سره نوی لوست پیلوي. | ۱۰ دقیقې |

| ۱-۲ د ښوونکي د تدریس کړنې | د زده کوونکو د زده کولو کړنې | وخت په دقیقو |
|---|---|---|
| ښوونکی د کتاب انځورونه زده کوونکو ته ورښيي او پوښتنه کوي چې د دغو انځورونو په هکله په څه پوهېږئ؟ <br>– ښوونکی د کتاب متن لولي او نوي لغات او اصطلاحات چې په لوست کې شتون لري پر تخته لیکي. <br>– ښوونکی له زده کوونکو څخه پوښتنې کوي. | – زده کوونکي ځواب وايي. <br>– زده کوونکي يې په خپلو کتابچو کې لیکي. <br>– زده کوونکي ورته ځواب وايي. | ۳۵ دقیقې |

**۷- د لوست د متن پوښتنو ته ځواب:**

۱. منديګک د هیواد له لرغونو سیمو څخه ده چې د کندهار په شمال لویدیځ کې پروت ده.
۲. هغه آثار او اسناد چې د افغانستان پنځه زره کلن تاریخ ثابتوي د منديګک په لرغونې سیمې کې مونډل شوي چې څېړنې يې په ۱۹۵۱ کال کې د فرانسوي لرغون پېژندونکو له خوا ترسره شوې.
۳. د منديګک خلکو په ترکمنستان کې د نمازګا تپې او آنو او د ایران د سیالک د تپې او د لرغوني هند د هرپا او موهنجودارو له خلکو سره اړیکې درلودې.

**۸- د ښوونکی لپاره اضافي معلومات**

د مدنیت لومړنی نښانې په افغانستان کې د منديګک له تپې څخه چې په کندهار کې موقعیت لري کشف شوي دي. په دې آثارو کې د تولید وسایل، په کور کې استعمالیدونکي وسایل، زینتي وسایل او نور کشف شوي دي. دغه تاریخي محل ۳۰۰۰ کاله پخوا د خلکو د استفادې وړ ځای و چې دایمي هستوګنه يې لرله.
د منديګک د استوګنې د ځای تر څنګه څمکې هم د کرنې نښې نښانې لري. له سر بندونو سره د ویالو علایم ، د استوګنې ځایونه، غنم او غلې دانې دلته د یوه مدنیت له پیلامې څخه حکایت کوي.
منديګک ټول ۱٤ آبادۍ درلودې له دغه تمدن څخه د ډبرې د عصر د آثارو اړوند لومړني کلتوري مرحله او له لوړې کلتوري طبقې څخه د برونزو او مسو تر عصر پورې په دغه ځای کې کشف شوي دي. فرانسوي پوهانو د مسیوګزیل تر لارښوونې لاندې په منديګک کې یو لړ کیندنې ترسره کړې دغو کیندنو په پرله پسې ډول لس کاله دوام درلود.


سرچینې:

1. *د افغانستان لرغونی تاریخ (احمد علي کهزد)*
2. *د افغانستان لومړني مدنیتونه-رسول باوري.*
3. *د افغانستان مختصر تاریخ عبدالحی حبیبي.*

**د (۶) لوست د تدریس لارښود پلان**

**د تدریس وخت (یو ساعت)**

**مضمون: تاریخ**

| **د مطالبو سرلیکونه** | **د مطالبو شرح** | |
|---|---|---|
| **۱- د لوست موضوع** | آیا آریائیان پیژنئ؟ | |
| **۲- ښوونیزې موخې: (پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي)** | له زده کوونکو څخه هیله کیږي چې د لوست په پای کې لاندې موخو ته لاس رسی ومومي.<br>– زده کوونکي دې د اریائیانو د کلمې له مفهوم او د آرین قام د ژوند کولو له څرنګوالي سره اشناشي.<br>– د آریائیانو د استوګنې له سیمو سره دې آشنا شي.<br>– د آریائیانو د ټولنیز جوړښت له نظام سره دې آشنا شي. | |
| **۳- د لوست ورکولو لارې چارې** | فعال تدریس | |
| **۴- د لوست ورکولو اړین توکي** | تخته، درسي کتاب، د افغانستان نقشه | |
| **۵- د ارزښت موندنې چلند** | په تحریری او تقریری توګه | وخت په دقیقو |
| **۶- لومړنی کړنې** | ښوونکی سلام اچوي او د زده کوونکو د حال پوښتنه کوي.<br>د هڅونې رامنځ ته کول:<br>ښوونکی د کتاب سرلیک د پوښتنې په توګه په ټولګي کې مطرح کوي او زده کوونکي سوچ او فکر کولو ته اړ باسي. | ۱۰ دقیقې |

| ۱-۲ د ښوونکي د لوست ورکولو کړنې | د زده کوونکو د زده کولو کړنې | وخت په دقیقو |
|---|---|---|
| – ښوونکی د آریائیانو په اړه پوښتنې مطرح کوي.<br>– آیا اریائیان پیژنئ؟<br>– آریایي قوم له کومه ځایه راغلی دی؟<br>– آریائیانو څرنګه ژوند کاوه؟<br>– ښوونکی درس د کتاب له مخې لولي.<br>– ښوونکی د زده کوونکو پوښتنو ته ځواب وايي او د زده کوونکو پوهه ارزوي.<br>– ښوونکی یو ځل بیا لوست توضیح کوي. | – زده کوونکي د ښوونکي پوښتنو ته ځواب وايي.<br>– د زده کوونکو له ډلې څخه دوه درې تنه یې د کتاب له مخې اړوند لوست لولي. | ۳۵ دقیقې |

**۷- د لوست د متن پوښتنو ته ځواب:**

۱. آریائیانو خپل ځانونه نجیب او اصیل ګڼل:

۲. آریائیانو د مخه تر دې چې بخدي ته ورسیږي د شپنتوب او کوچي توب ژوند درلود.

**۸- د ښوونکی لپاره اضافی معلومات**

آریائیان د آمو له شمال څخه افغانستان ته راغلل. تاریخ د دوی راتګ له میلاده ۱۵۰۰ کاله مخکې ثابت کړی دی. آریائیانو له راتګ د مخه د کوچیتوب ژوند درلود. د آریائیانو په اړه معلومات د ویدي له متونو څخه ترلاسه شوی دی. ویدي سرودونه څلور برخې لري چې عبارت دی له: ریګویدا، سام ویدا ویجورویدا او اتهرویدا. دغه ټول ویدا یان د آریایانو له خوا ویل شوي دي او په هغو کې ټولنیز، اقتصادي او عقیدتي معلومات شته. له هغه وروسته چې آریایان ډیر شول، نو یوځل بیا یې د سهیل او لویدیځ په لوري کډوالی ته مخه کړه او په بین النهرین او هند کې یې د مدنیتونو بنسټونه کیښودل چې له همدې امله د نړۍ په لرغوني تاریخ کې د ستري ونډې خاوندان دي.

سرچینې:


۱. *د افغانستان لرغونی تاریخ (احمد علی کهزاد)*

۲. *د نړۍ پخوانی تاریخ-سید سعد الدین ها شمي*

۳. *د افغانستان لومړني مدنیتونه-رسول باوري.*

**د (۷) لوست د تدریس لارښود پلان**

**پلان د تدریس وخت (یو ساعت)**

**مضمون: تاریخ**

| **د مطالبو سرلیکونه** | **د مطالبو شرح** | |
|---|---|---|
| **۱- د لوست موضوع** | د ویدي مدنیت په اړه مو څه اوریدلي دي. | |
| **۲- ښوونیزې موخې:**<br>**(پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي)** | له زده کوونکو څخه هیله کیږي چې د لوست په پای کې لاندې موخو ته لاس رسی ومومي.<br>– زده کوونکي دې د ویدي له نوم او مدنیت سره آشنایي پیدا کړي.<br>– د ویدي مدنیت په زمانه کې دې د ټولنیز ژوند په اړه پوهاوی ترلاسه کړي.<br>– د ویدي تمدن مرکز او د ژوند سیمې دې وپیژني. | |
| **۳- د لوست ورکولو لارې چارې** | فعال تدریس | |
| **۴- د لوست ورکولو اړین توکي** | د ټولګي تخته، د لوست کتاب، د افغانستان نقشه، او د ځکمې د کرې موډل | |
| **۵- د ارزښت موندنې چلند** | په تحریری او تقریری توګه | وخت په دقیقو |
| **۶- لومړنی کړنې** | ښوونکی سلام اچوي او د زده کوونکو د حال پوښتنه کوي.<br>د هڅونې رامنځ ته کول:<br>ښوونکی یوه پوښتنه رامنځ ته کوي په دې ډول چې ایا ستاسو په کور کې ټاکلي مراتب شتون لري؟ ستاسو کورنی څرنګه تنظیم شوي ده. د ویدي دوران په څیر ده که نه؟ | ۱۰ دقیقې |

| ۱-۲ د ښوونکي د لوست ورکولو کړنې | د زده کوونکو د زده کولو کړنې | وخت په دقیقو |
|---|---|---|
| – ښوونکی پر تخته باندې د ویدي مهال د کورنۍ ګراف رسموي.<br>– ښوونکی د کتاب متن لولي.<br>– ښوونکی د زده کوونکو پوښتنو ته ځواب وايي. | – زده کوونکي د ښوونکي یاداښتونه په خپلو کتابچو کې لیکي.<br>– ښوونکی له درې تنه زده کوونکو څخه غواړي چې د لوست متن ولولي.<br>– زده کوونکي ځواب اوري او په خپلو کتابچو کې يې لیکي. | ۳۵ دقیقې |

**۷- د لوست د متن پوښتنو ته ځواب**:

۱. د افغانستان لومړنی مدنیت د ویدي په نامه یادیږي. دغه مدنیت خپل نوم له هغو متونو څخه اخستی چې د همدې دورې لپاره عمده منابع ګڼل کیږي.

۲. په ویدي مدنیت کې ښځو زیات ارزښت درلود. مشهورې شاعرانې لکه: خونم ګوشا او لوپامودرا له همدې ډول شاعرانو څخه وې.

۳. په ویدي زمانې کې خلکو خدایانوته عقیده درلوده لکه وارونا د شپې خدای او اګنی د اور خدای.

**۸- د ښوونکی لپاره اضافي معلومات**

د لرغوني افغانستان پخواني مدنیت د ویدي په نامه یاد شوی دی دغه کتاب خپل نوم له هماغه څلورګونو کتابونو، ریګویدا، اتهرویدا سام وید او ویجورویدا څخه اخیستی دی. څرنګه چې دغه کتابونه د ویدي په نامه یاد شوي، ځکه خو د دغه مدنیت نوم هم ویدي کیښودل شوی دی. په ویدي مدنیت کې د ټولنیز ژوند بنسټ پر کورنۍ ولاړ و. په ویدي مدنیت کې د ښځې مقام روښانه و، د ښځو ځینې شعرونه په ویدا ګانو کې راغلي دي. د ښځو ډېرې مشهورې شاعرانې خانم ګوشا او لوپامود را نومیدلې. په مختلفو ارباب الانواعو باندې عقیدې موجودې وې. د هغې دورې خدایان: وارونا یا د شپې خدای او اګني یا د اور خدای یادیدل.


سر چینې:

*۱. د افغانستان لرغوني تاریخ- احمد علي کهزاد.*

*۲. د پخواني افغانستان تاریخ (عبدالحی حبیبي).*

*۳. د نړۍ د ادیانو او مذهبونو تاریخ (عبداله مبلغی).*

**د (۸) لوست د تدریس لارښود پلان**

**د تدریس وخت (یو ساعت)**

**مضمون: تاریخ**

<table>
<tr><th>د مطالبو سرلیکونه</th><th colspan="2">د مطالبو شرح</th></tr>
<tr><td>۱- د لوست موضوع</td><td colspan="2">د اوستا د مدنیت په اړه څه معلومات لرئ؟</td></tr>
<tr><td>۲- ښوونیزې موخې: پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي</td><td colspan="2">له زده کوونکو څخه هیله کیږي چې د لوست په پای کې لاندې موخو ته لاس رسی ومومي.<br>– زده کوونکي دې د اوستا له نامه سره آشنا شي.<br>– زده کوونکي دې د اوستايي کلتور، دود د ستور او د اوستا کتاب وپیژني.<br>– له زردشت سره دې پیژنګلوي ترلاسه کړي.<br>د اوستا مدنیت اصلي ځانګړتیاوې دې وپیژني.</td></tr>
<tr><td>۳- د لوست ورکولو لارې چارې</td><td colspan="2">فعال تدریس</td></tr>
<tr><td>۴- د لوست ورکولو اړین توکي</td><td colspan="2">تخته، د افغانستان او ګاونډیو هیوادونو نقشه.</td></tr>
<tr><td>۵- د ارزښت موندنې چلند</td><td>په تحریری او تقریری توګه</td><td>وخت په دقیقو</td></tr>
<tr><td>۶- لومړنی کړنې</td><td>ښوونکی سلام اچوي او د زده کوونکو د حال پوښتنه کوي.<br>د هڅونې رامنځ ته کول:<br>ښوونکی زده کوونکي هغه انځور ته متوجه کوي چې په اتم لوست کې شته. او پوښتنه کوي چې دا شخصیت څوک دی؟ او په دې توګه زده کوونکي د سوچ او فکر کولو خوا ته هڅوي.</td><td>۱۰ دقیقې</td></tr>
</table>

| ۱-۲ د ښوونکی د لوست ورکولو کړنې | د زده کوونکو د زده کولو کړنې | وخت په دقیقو |
| --- | --- | --- |
| – ښوونکی د لوست سرلیک پر تخته بانديې لیکي.<br>– ښوونکی د افغانستان په نقشه کې د اوستایي مدنیت ټاټوبی مشخص او ځانګړی کوي او د زردشتي دین، او کلتور منونکی چې په ایران او آذربایجان کې شتون لري ښیي.<br>– ښوونکی د زده کوونکو پوښتنو ته ځواب وایي. | – زده کوونکي په خپلو کتابچو کې یادداشت لیکي.<br>– زده کوونکي اړوند توکي په خپلو کتابچو کې لیکي.<br>– زده کوونکي د ښوونکی له خوا ځوابونه په کتابچو کې لیکي. | ۳۵ دقیقې |

## ۷- د لوست د متن پوښتنو ته ځواب:

– اوستایي تمدن د افغانستان ډېر لرغونی تمدن دی. اوستا د قانون او بنسټ په معنا دی.

– زردشت یا سپین تمان د زردشتیانو لارښود دی. ده ویلي دي چې: ښه کول، ښه ویل او ښه انګیرل.

## ۸- د ښوونکی لپاره اضافي معلومات

د اوستایي مدنیت نوم د اوستا له کتاب څخه اخستل شوی دی. د دغه مدنیت بنسټ زرکاله له میلاده د مخه پیل او تر ۷ سوه له میلاده مخکې کلو پورې، دوام موندلی دی. د دغه مدنیت پلازمینه بلخ و او دغه تاریخي کتاب ته اړتیا له هماغه ځایه سرچینه اخلي. اوستا د قانون او بنسټ په معنی ده د اوستا وېناوې هماغه د زردشت نصیحتونه دي چې د خپلو منونکو لپاره یې ویلې دي. اوستا پنځه مهمې برخې لري چې د وسپرد، ویندیداد، یشت، یسنا، او کوچنی اوستا په نومونو یاد شوي دي- زردشت په بلخ کې وزیږیده. د ده پلار پوراسپه او نیکه یې میچت اسپه نومیده. د مور نوم یې دوغدر و دوې میرمنې یې درلودې چې له یوې میرمنې څخه یې یو زوی او درې لوڼې درلودې او له دویمې میرمنې څخه یې دوه زامن درلودل: زردشت د اسپه په کورنۍ پورې اړوند پیژندل شوی دی.


*سرچینې:*

۱. *د افغانستان پخوانی تاریخ (احمد علي کهزاد)*
۲. *د افغانستان لنډ تاریخ (عبدالحی حبیبي)*
۳. *افغانستان په لرغونې زمانې کې (رسول باوري)*

**د (۹) لوست د تدریس لاربښود پلان**

**د تدریس وخت (یو ساعت)**

**مضمون: تاریخ**

| **د مطالبو سرلیکونه** | **د مطالبو شرح** | |
|---|---|---|
| **۱- د لوست موضوع** | د افغانستان اساطیری تاریخ | |
| **۲- ښوونیزې موخې: (پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي)** | له زده کوونکو څخه هیله کیږي چې د لوست په پای کې لاندې موخو ته لاس رسی ومومي.<br>– زده کوونکي دې د افغانستان له اساطیري تاریخ سره اشنا شي.<br>– زده کوونکي دې د افغانستان اساطیري کورنۍ وپیژنئ.<br>– د افغانستان د اساطیري تاریخ په سرچینو دې پوه شي.<br>– د روایاتو له مخې دې د تاریخي پیښو په تدوین باندې پوه شي. | |
| **۳- د لوست ورکولو لارې چارې** | فعال تدریس | |
| **۴- د لوست ورکولو اړین توکي** | د افغانستان نقشه، درسي کتاب، تخته | |
| **۵- د ارزښت موندنې چلند** | په تحریری او تقریری توګه | وخت په دقیقو |
| **۶-لومړنی کړنې** | ښوونکی سلام اچوي او د زده کوونکو د حال پوښتنه کوي.<br>د هڅونې رامنځ ته کول:<br>ښوونکی پوښتنه مطرح کوي چې زده کوونکي د رستم له نامه سره آشنایي لري او یا یې په اړه څه اوریدلي دي؟ | ۱۰ دقیقې |

| ۱-۲ د ښوونکی د لوست ورکولو کړنې | د زده کوونکو د زده کولو کړنې | وخت په دقیقو |
|---|---|---|
| - ښوونکی درستم نوم په تخته لیکي او له زده کوونکو څخه د رستم او د هغه د پهلوانی په اړه پوښتنې کوي.<br>- ښوونکی د پهلوانی، قهرمانی او غیر نیولو مثالونه راوړي او د افغانستان د اساطیري کورنی نوم د تختې پر مخ لیکي.<br>- ښوونکی تاریخي روایات او کیسې بیانوي.<br>- ښوونکی زده کوونکي په ګروپونو ویشي.<br>- هرې ډلې ته د بحث موضوع ټاکي.<br>- له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي. | - زده کوونکي په کتابچو کې لیکي.<br>- زده کوونکي ځواب ورکوي.<br>- زده کوونکي غوږ ږدي.<br>- زده کوونکی مطالب په خپلو کتابچو کې لیکي. | ۳۵ دقیقې |

## ۷- د لوست د متن پوښتنو ته ځواب:

۱. د افغانستان په اساطیري تاریخ کې درې کورنی شاملې دي
۲. د افغانستان لومړنی اساطیري کورنی پیشدادیان نومیدل.
۳. د افغانستان د اساطیري تاریخ درې سرچینې عبارت دي له:- اوستیایي متونو د فردوسي شاهنامه او له شفاهي داستانونو څخه.

## ۸- د ښوونکی لپاره اضافي معلومات

د افغانستان په لرغوني تاریخ کې ډېره پخوانی کورنی پیشدادیان ګڼل شوې دي. د دغې کورنی بنسټ د کیومرث په واسطه کیښودل شوی دی. هغه د رمې اوګلې خاوند و، د سمرقند په تالی برزو کې یوه مجسمه کشف شوې ده چې نیمه تنه یې د انسان او نیمه نوره یې د خاروی ده. ځینې څیړونکي په دې عقیده دي چې دغه مجسمه د کیومرث له زمانې څخه ده. دویمه کورنی د کیانیانو په نامه یاده شوې ده. دوی په دې خاطر په کیانیانو یاد شوي چې د دوی په نومونو کې ((کی)) راغلی لکه کیکاوس، کیقباد، کیخسرو او داسې نور دغه لړی له تورانیانو سره جنګیدلې ده او د امپراتوری پراخه سیمه یې تر واک لاندې وه.
د افغانستان دریمه اساطیري کورنی د اسپه په نامه یادیږي. دغه نوم ځکه په دی کورنی باندې ایښودل شوی چې د دوی د نوم په پای کې اسپه راځي لکه ګرشاسپ.

سرچینې:


۱. *د افغانستان پخوانی تاریخ (احمد علي کهزاد)*
۲. *د افغانستان لنډ تاریخ (عبدالحی حبیبي)*
۳. *افغانستان په لرغونې زمانې کې (رسول باوري)*

**د (۱۰) لوست د تدریس لارښود پلان**

**د تدریس وخت (یو ساعت)**

**مضمون: تاریخ**

| | | |
|---|---|---|
| **د مطالبو سرلیکونه** | **د مطالبو شرح** | |
| **۱- د لوست موضوع** | لرغونی افغانستان او د پردیو سره اړیکي | |
| **۲- ښوونیزې موخې:**<br>**(پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي)** | له زده کوونکو څخه هیله کیږي چې د لوست په پای کې لاندې موخو ته لاس رسی ومومي.<br>– زده کوونکی دې له میلاده د مخه لـه اوومې پیړۍ نـه تـر دریمـې پیړۍ پورې د افغانستان له اوضاع سره آشنا شي.<br>– د هغې زمانې درې مهمې امپراتورۍ دې وپیژني.<br>– د هغوی تر واک لاندې سیمو سره دې آشنا شي.<br>– په هیواد کې دې د یوه پیاوړي مرکزیت له نشتوالی نه خبر شي. | |
| **۳- د لوست ورکولو لارې چارې** | فعال تدریس | |
| **۴- د لوست ورکولو اړین توکي** | تخته، د نړۍ نقشه او د افغانستان نقشه، کتاب | |
| **۵- د ارزښت موندنې چلند** | په تحریری او تقریری توګه | وخت په دقیقو |
| **۶- لومړنی کړنې** | ښوونکی سلام اچوي او د زده کوونکو د حال پوښتنه کوي.<br>د هڅونې رامنځ ته کول:<br>ښوونکی زده کوونکي د کتاب عکسـونو تـه متوجه کـوي او پوښتنه کوي چې اسکندر پیژنئ. | ۱۰ دقیقې |

| وخت په دقیقو | د زده کوونکو د زده کولو کړنې | ۱-۲ د ښوونکی د لوست ورکولو کړنې |
|---|---|---|
| ۳۵ دقیقې | – زده کوونکي هغه په خپلو کتابچو کې لیکي.<br>– لـه زده کوونکـو څخـه دوه تنـه کتاب لولي.<br>– زده کوونکي نوي اصـطلاحات او لغات په خپلو کتابچو کې لیکي.<br>– زده کـوونکي ځوابونـه پـه خپلـو کتابچو کې لیکي. | – ښـوونکی د لوسـت سـرلیک پـر تختـه بانـدې لیکي.<br>– ښوونکی د کتاب متن لولي.<br>– ښوونکی نوي اصطلاحات او لغات معنا کـوي او مهم موارد یې توضیح کوي.<br>– ښوونکی د زده کوونکو پوښتنو ته ځواب وایي او د پوښتنو په توګـه د زده کوونکـو زده کـړه ارزوي. |

**۷- د لوست د متن پوښتنو ته ځواب:**

۱. هخامنشیان د لرغوني ایران د امپراتورانو لړۍ ده چې بنسټ یې کوروش کیښود او کابو درې پیړۍ یې پـر ایران واکمني وکړه.

۲. یو نانیانو د سرې بحیرې په غاړو کې له میلاده درې پیړۍ د مخه د امپراتورۍ بنسټ کیښود او د افغانسـتان تر ځمکو هم راورسیدل.

۳. هندي موریایانو زموږ د هیواد په سهیل کې پرځینو سیمو واکمني لرله او په تیره هغه مهال چې سلوکیدیانو د هغو په وړاندې ماته وخوړه او په ګندهارا یې ولکه پیدا کړه.

**۸- د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

له میلاده دمخه له شپږمې پیړۍ څخه تر دویمې پیړۍ پورې په لرغوني افغانستان کې پیـاوړی او مرکـزي حکومـت شتون نه درلود، او محلي حکومتونه به کله د هخامنشیانو او کله به د موریائیانو او یو نانیانو تر ولکې لاندې وو. دغه ګډوډي د هخامنشیانو له زمانې څخه پیل شوه. هخامنشیان د یو نانیانو لخوا له ماتې سره مخامخ شول چې له امله یې د هخامنشیانو ټولې سیمې د یونانیانو ترولکې لاندې راغلې. سکندر په افغانستان کې څلور کاله وجنګید چې د یـو سفزو په جنګ کې ټپي شو. وروسته بیا د سند د سیند له لارې بیرته را ستون شو، خو د لارې په اوږدو کې مړ شو. موریائیانو د لرغوني افغانستان په سویل کې لویه امپراتوري رامنځ ته کړه چې په ځینو سیمو کې یې له یونانیانو سره شخړې هم کولې. دوی په ځانګړي توګه د کندهار د نیولو په موخه له یونانیانو سره وجنګیدل چې باالاخره پـه یـو نانیانو بریالي شول او کندهار یې تر خپلې ولکې لاندې راووست.

سرچینې:


۱. *تاریخ قدیم افغانستان (احمد علي کهزاد)*

۲. *تاریخ مختصر افغانستان (عبدالحی حبیبي)*

۳. *افغانستان په لرغوني زمانې کې (رسول باوري)*

**د (۱۱) لوست د تدریس لارښود پلان**

**د تدریس وخت (یو ساعت)**

**مضمون: تاریخ**

| **د مطالبو سرلیکونه** | **د مطالبو شرح** | |
|---|---|---|
| **۱- د لوست موضوع** | د باختري یونان خپلواک دولتونه | |
| **۲- ښوونیزې موخې (پوهنیزې، مهارتي، ذهني)** | هیله ده د لوست په پای کې زده کوونکي لاندې موخو ته ورسیږي:<br>- زده کوونکي دې د باختري یونان د خپلواکو دولتونو سره آشنا شي.<br>- زده کوونکي دې په نقشه کې د باختري یونان د امپراتورۍ حدود وپیژني.<br>- زده کوونکي دې د باختري یوناني دولت له راپرځیدو سره آشنا شي. | |
| **۳- د لوست ورکولو څرنګوالی** | فعال تدریس | |
| **۴- د تدریس اړین توکي** | د لوست کتاب، تخته، د آسیا تاریخي نقشه. | |
| **۵- د ارزونې څرنګوالی** | په تحریری او تقریری توګه | وخت په دقیقو |
| **۶- لومړنی کړنې** | ښوونکی ټولګي ته د ننوتو سره سم سلام اچوي او په ورین تندي د زده کوونکو د حال پوښتنه کوي او بیا د هڅونې په رامنځته کولو سره نوی لوست پیلوي. | ۱۰ دقیقې |

| وخت په دقیقو | د زده کوونکو د زده کولو کړنې | ۱-۲ د ښوونکی د لوست ورکولو کړنې |
| --- | --- | --- |
| ۳۵ دقیقې | – زده کوونکي د لوست سرلیک په خپلو کتابچو کې لیکي.<br>– دوه تنه زده کوونکي لوست د کتاب له مخې لولي.<br>– تعریف شوي اصطلاحات په خپلو کتابچو کې لیکي.<br>– زده کوونکي د ښوونکي پوښتنو ته ځواب وایي. | – ښوونکی د لوست سرلیک پرتخته باندې لیکي.<br>– ښوونکی د کتاب متن لولي.<br>– ښوونکی نوی اصطلاحات تعریفوي او د زده کوونکو پوښتنو ته ځواب وايي.<br>– ښوونکی له زده کوونکو څخه د هغه څه په اړه پوښتنه کوي چې دوی زده کړي دي. |

**۷- د لوست د متن پوښتنو ته ځواب:**

۱. اي تیدیوم د باختري یونان ډیر پیاوړی ټولواک و ده د خپلې واکمنۍ پر مهال د شامي سلوکیدیانو څو یرغلونه په شا وتمبول.

۲. دیمتروس د باختري یونان دویم ټولواک و، ده تر سند او پنجاب پورې پرمختګ وکړ او شمالي هند یې د ګنګا تر څنډو تر خپلې ولکې لاندې راوست.

۳. د باختري یونان دولت له میلاده د مخه د ۱۳۵ کلو په شاو خوا کې خپل مرکز له بلخ نه بګرام ته ولیږداوه له میلاده ۷۰ کاله وړاندې د یوچي قام له خوا تر پرله پسې یرغلونو لاندې راغی او وروسته د یوه مرکزي ځواک د نه لرلو له امله له منځه ولاړ او واکمني یې یوچیانو یا کوشانیانو ته ورسیده.

**۸- د ښوونکی لپاره اضافي معلومات**

د باختري یونان په اړه یوه مهمه سرچینه د دې پېر (دورې) مسکوکات دي. دغه مسکوکات د افغانستان په بیلابیلو سیمو کې کشف شوي دي. له دې ټولګې څخه یوه خزانه هم په کندوز کې کشف شوې مسکوکات دي. ډیرو باختري یوناني مسکوکاتو حروفي رمزونه درلودل په دغه خزانه کې لرغوني سکه د سلوکیدیانو په تیره د انتي کیوس پورې اړوند ده. وروستنۍ سکه د هرمایوس اړوند ده. هرمایوس د باختري یونان وروستنی ټولواک و.

سرچینې:


٤. *تاريخ قديم افغانستان (احمد علي كهزاد)*

٥. *تاريخ مختصر افغانستان (عبدالحی حبیبی)*

٦. *مدنیت های اولیه افغانستان (رسول باوري)*

**د (۱۲) لوست د تدریس لارښود پلان**

**د تدریس وخت (یو ساعت)**

**مضمون: تاریخ**

| **د مطالبو سرلیکونه** | **د مطالبو شرح** | |
|---|---|---|
| **۱- د لوست موضوع** | د باختري یونان کلتوري او هنري ځانګړتیاوې | |
| **۲- ښـــــوونیزې مـــــوخې: (پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي)** | له زده کوونکو څخه هیله کیږي چې د لوست په پای کې لاندې موخو ته لاس رسی ومومي.<br>– زده کوونکي دې د باختري یونان له کلتوري او هنري ځانګړتیـاوو سره آشنا شي.<br>– د باختري یونان دورې له مسکو کاتو سره دې پیژنـدګلوي ترلاسـه کړي.<br>– د اخلاقي او ټولنیز ژوند له چلند سره دې آشنا شي.<br>– د هغې دورې د هنري ودې په اړه دې فکر وکړي. | |
| **۳- د لوست ورکولو لارې چارې** | فعال تدریس | |
| **۴- د لوست ورکولو اړین توکي** | درسي کتاب، تخته، د یونان د دوران انځورونه | |
| **۵- د ارزښت موندنې چلند** | په تحریری او تقریری توګه | وخت په دقیقو |
| **۶- لومړنی کړنې** | ښوونکی سلام اچوي او د زده کوونکو د حال پوښتنه کوي.<br>د هڅونې رامنځ ته کول:<br>ښوونکي د زده کوونکو پاملرنـه پـه کتـاب کـې انځورونـو تـه اړوي او د پوښتنې په توګه وایي آیا دا ډول مسکوکات مو پـه کوم ځای کې لیدلي دي؟ | ۱۰ دقیقې |

| وخت په دقیقو | د زده کوونکو د زده کولو کړنې | ۱-۷ د ښوونکی د لوست ورکولو کړنې |
| --- | --- | --- |
| ۳۵ دقیقې | – زده کوونکي د ښوونکي لیکنې په خپلو کتابچو کې لیکي.<br>– درې څلور زده کوونکي په نوبت سره د لوست متن لولي.<br>– زده کوونکی د ښوونکي ځوابونه په خپلو کتابچو کې لیکي. | – ښوونکی د لوست سرلیک د ټولګي پر تخته لیکي.<br>– ښوونکی د لوست متن د کتاب له مخې لولي او زده کوونکو ته یې توضیح کوي.<br>– ښوونکی د زده کوونکو پوښتنو ته ځواب وایي. |

**۷- د لوست د متن پوښتنو ته ځواب:**

۱. د باختري یونان اقتصادي وضعې مناسبه وده کړې وه. دغه دولت له نورو هیوادونو سره سوداګریزې اړیکې ټینګې کړې وې. د صنعت، اوبو لګولو او څاروي ساتنې برخو یې د پام وړ وده کړې وه. په ضراب تونونو کې د سرو زرو مسکوکات ضرب کېدل چې دا په خپله د اقتصادي ښې وضعې څرګندونه کوي.

۲. د بګرام او آی خانم په لرغونو سېمو کې یوناني تعمیراتي سیستم تر سترګو کیږي.

۳. د یونانیانو د دورې معمول رسم الخط یا لیکدود باختري یوناني و.

**۸- د ښوونکي لپاره اضافی معلومات**

د یوناني لښکرو له یرغل سره جوخت د کسب او کار خاوندان هم ترولکې لانـدې هیـوادو تـه لاړل. انځـورګران مجسمه جوړوونکي، معماران، لیکوالان او نور له دې ډلې څخه وو. دغو هنروالو په خپل مسلکي مهارت سـره یـوه نوې زمینه د نوښت لپاره رامنځ ته کړه. له نوي چاپیریال او کلتور سره آشنا شول او لـه داسـې ټولنـو سـره مخامخ شول، چې په عقیدتي او فکري لحاظ یې له دوی سره توپیر درلود. فکري او عقیدتي تـوپیر د هغـوی د امتـزاج لـه امله څرګند شو. د یوناني ختیځ او لویدیځ ارباب الانوعه په ځانګړتیا وو سره د سیکي جـوړول د دغـه امتـزاج یـوه نمونه ده، هغه مهال باختري یونان له اقتصادي پلوه په ښه حالت کې واقع و. د سرو زرو د سکو ضـرب پـه خپلـه د دغې مدعا پخلی کوي. په دغه لیک دود کې یو شمیر ډېرلیکونه په افغانستان کې کشـف شـوي چـې لـه دې ډلـې څخه کولای شو د کلیرچوتس ډېرلیک د کندهار د لیکنې، د درونټې ډېرلیک او نورو نومونه واخلو.


سرچینې:

۱. *تاریخ قدیم افغانستان (احمد علي کهزاد)*
۲. *تاریخ مختصر افغانستان (عبدالحی حبیبي)*
۳. *مدنیت های اولیه افغانستان (رسول باوري)*

**د (۱۳) لوست د تدریس لارښود پلان**

**د تدریس وخت (یو ساعت)**

**مضمون: تاریخ**

| **د مطالبو سرلیکونه** | **د مطالبو شرح** | |
|---|---|---|
| ۱- د لوست موضوع | آیا د کوشاني واکمنانو په هکله څه معلومات لرئ؟ | |
| ۲- ښوونیزې موخې: (پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي) | له زده کوونکو څخه هیله کیږي چې د لوست په پای کې لاندې موخو ته لاس رسی ومومي.<br>– زده کوونکی دې له کوشاني کورنۍ سره آشنا شي.<br>– د کوشانیانو د امپراتورۍ پولې (سرحدونه) دې وپیژني.<br>– د کوشانیانو د دورې سرچینې دې وپیژني.<br>– د کوشانیانو د امپراطورۍ پراخوالی دې وپیژني. | |
| ۳- د لوست ورکولو لارې چارې | فعال تدریس | |
| ۴- د لوست ورکولو اړین توکي | تخته، د افغانستان نقشه، درسي کتاب. | |
| ۵- د ارزښت موندنې چلند | په تحریری او تقریری توګه | وخت په دقیقو |
| ۶- لومړنۍ کړنې | ښوونکی سلام اچوي او د زده کوونکو د حال پوښتنه کوي.<br>د هڅونې رامنځ ته کول:<br>ښوونکی دې د لوست سرلیک د پوښتنې په توګه مطرح کړي او د زده کوونکو پاملرنه دې راواړوي. یا دې د موزیم د لیدنې زمینه برابره کړي. که چیرې موزیم ته رسیدنه ممکنه نه وي. د یوې لرغونې سیمې د لیدو لپاره دې زده کوونکو ته زمینه برابره کړي. | ۱۰ دقیقې |

| ۱-۲ د ښوونکی د لوست ورکولو کړنې | د زده کوونکو د زده کولو کړنې | وخت په دقیقو |
| --- | --- | --- |
| - ښوونکی دې زده کوونکي وهڅوي چې د امکان په صورت کې د موزیم لیدو ته آماده شي.<br>- ښوونکی په موزیم کې د کوشاني دورې اړوند آثار معرفي کوي او یا په هماغه لرغوني سېمې کې يې ارزښت څرګندوي.<br>- ښوونکی په بیرته راتګ کې د زده کوونکو د سلامتی په اړه اطمینان حاصلوي. د موزیم د نه شتون په حال کې د پخوانیو لوستونو په څیر دغه لوست هم تدریسوي.<br>- د زده کوونکو له پوهاوي څخه ارزونه کوي. | - زده کوونکي موزیم او یا بل لرغونی ځای د لیدو په منظور د تللو لپاره تیاریږي.<br>- زده کوونکي د خپل ښوونکي معلومات په خپلو کتابچو کې لیکي. | ۳۵ دقیقې |

## ۷- د لوست د متن پوښتنو ته ځواب:

۱. درباطك له ډبرلیك څخه کیدای شي ډیر موثق معلومات ترلاسه شي.
۲. لومړنی کوشاني امپراتور کجو لاکدفیزیس نومیده.
۳. کوشاني ستر امپراتور د کنشکا په نامه یادیده چې له ۱۲۷ میلادي نه تر ۱٤۷ میلادي کال پورې يې په پراخه هیواد واکمني کوله. د دغه امپراتور پرمهال پوره امنیت شتون درلود او د نړۍ له امپراتور یو سره اړیکې ټینګې شوې وې.

## ۸- د ښوونکی لپاره اضافه معلومات

د کوشانیانو د امپراتوۍ دوره د لرغونی افغانستان روښانه دوره بلل کیږي. د دغې دورې عمده منابع لیکنې او مسکوکات دي چې د هېواد په بیلا بیلو ګوټونو کې کشف شوي دي له دغو کتیبو څخه یوه يې درباطك په نامه یادیږي چې پکې د کنشکا د نیکه نوم په روښانه توګه لیکل شوی دی. سربیره پر دې د کنشکا د امپراتورۍ نښې نښانې هم پکې روښانه دي. د دې لړۍ د واکمنۍ زمانه له ٤۰ میلادي کال څخه پیل او تر ۱۸۲ میلادي کاله پورې يې پر ټول افغانستان، د هند پر شمال د ایران پر ختیځ او د منځنۍ اسیا د هیوادونو پر سهیلي برخو امپراتوري کړیده. وروستنۍ واکمن چې پر دغې ټولې امپراتورۍ باندې يې حکومت وکړ واسشکا یا واسودیوا نومیده چې د ده له مړینې سره د کوشانیانو امپراتوري مخ په ځوړ شوه او په محلي او کوچنیو حکومتونو وویشل شوه. که څه هم د دغې امپراتوۍ مرکزی واك له منځه ولاړ، خو د محلي حکومتونو په څېرېې تر ډېر وخته پورې پر افغانستان واکمنی درلوده.

سرچینې:


۱. *تاریخ قدیم افغانستان (احمد علی کهزاد)*
۲. *تاریخ مختصر افغانستان (عبدالحی حبیبی)*
۳. *مدنیت های اولیه افغانستان (رسول باوري)*

**د (١٤) لوست د تدريس لارښود پلان**

**د تدریس وخت (يو ساعت)**

**مضمون: تاریخ**

| د مطالبو سرليکونه | د مطالبو شرح | |
|---|---|---|
| **١- د لوست موضوع** | آيا د کوشانيانو د مهمو سياسي او کلتوري مرکزونو په اړه معلومات لرئ؟ | |
| **٢- ښوونيزې موخې: (پوهنيزې، مهارتي او ذهنيتي)** | له زده کوونکو څخه هيله کيږي چې د لوست په پای کې لاندې موخو ته لاس رسی ومومي.<br>– د زده کوونکو اشنا کيدل له کوشاني مهمو سياسي مرکزونو سره.<br>– د کوشاني امپراتورى د نقشې او د وريښمو لارې ترسيم ته لاسرسی.<br>– له هغو آثارو سره آشنايي چې د کوشانيانو له مهم مرکز بګرام څخه کشف شوي دي. | |
| **٣- د لوست ورکولو لارې چارې** | فعال تدريس | |
| **۴- د لوست ورکولو اړين توکي** | د افغانستان نقشه،کتاب، په کوشاني دوران پورې اړوند انځورونه. | |
| **۵- د ارزښت موندنې چلند** | ارزونه په تحريری او تقريری توګه | وخت په دقيقو |
| **٦- لومړنی کړنې** | ښوونکی سلام اچوي او د زده کوونکو د حال پوښتنه کوي او بيا د هڅونې په رامنځته کولو سره نوی لوست پيلوي. | ۱۰ دقيقې |

| ۱-۲ د ښوونکی د لوست ورکولو کړنې | د زده کوونکو د زده کولو کړنې | وخت په دقیقو |
|---|---|---|
| – ښوونکی د لوست سرلیک پر تخته لیکي.<br>– ښوونکی د لوست متن لولي او زده کوونکو ته يې توضيح کوي.<br>– ښـوونکی د زده کوونکـو پوښـتنو تـه ځـواب وايي.<br>– د زده کوونکو معلومات او فعالیت ارزوي. | – زده کوونکي د لوست توضیحات په خپلو کتابچو کې لیکي.<br>– لـه زده کوونکـو نـه دري تنـه د لوست متن لولي.<br>– زده کوونکی په خپلو کتابچو کې ځوابونه لیکي. | ۳۵ دقیقې |

## ۷- د لوست د متن پوښتنو ته ځواب:

۱. په ۱۹۳۷ میلادي کال کې په بګرام کې کیندنې پیل شوې.

۲. د بګرام ودانیز پلان د دفاعي سیستم پر بنسټ طرح شوی و.

۳. د وریښمولو په لاره له چین نه تر روم پورې رسیده، د دغې لارې زیاته برخه په کوشاني امپراتـورۍ کـې تیر یده. د لارو په اوږدو کې کامل امنیت شتون درلود. د ډېرو آثارو شتون چې د نړۍ له ګوټ ګوټ نـه بګرام ته راوړل شوي وو. د هغو سوداګریزو اړیکو څرګندونـه کـوي چـې د وریښـموله لارې رامنځ تـه شوې وې.

## ۸- د ښوونکی لپاره اضافي معلومات

بګرام د کوشانیانو د دورې سیاسي مرکز او د کنشکا د دوبي سیاسي پلازمینه وه. د دغه مهم مرکز بنسټ اسـکندر کیښود. دغه مرکز د شتل، غوربند او پنجشیر سیندونو په تقاطع کې پروت و. دغه ځای اساساً یـو دفـاعي موقعیـت درلود او د یوې پلازمینې او مرکز په توګه ورڅخه کار اخیستل کیده. له بګرام څخه د ترلاسه شویو آثـارو شـمیر زرګونو پارچو ته رسیږي. دغه ټول اثار په کوشاني سلطنتي کورنۍ پورې اړوند و چې ځانګړې ظرافت یې په جوړ ولو کې کارېدلې و. له هغو مهمو آثارو څخه چې په دغه ځای کې کشف شوي له ښیښه یـې اثـارو، مسـکوکاتو، زینتي وسایلو او د هندی عاج له ټوټو څخه عبارت دي. دغه آثار دوه مطلبه روښانوي: لومړی دا چې د کوشـانیانو سوداګریزې اړیکې د نړۍ له لیرې سیمو او هېوادو سره څرګنـدوي او دویـم مطلـب دا چـې د بـاګرام حیثیـت د کوشاني امپراتورۍ د پلازمینې په توګه ښکاره کوي.


سرچیني:

۱. *تاریخ قدیم افغانستان (احمد علي کهزاد)*

۲. *تاریخ مختصر افغانستان (عبدالحی حبیبي)*

۳. *مدنیت های اولیه افغانستان (رسول باوري)*

د (۱۵) لوست د تدریس لارښود پلان

د تدریس وخت (یو ساعت)

مضمون: تاریخ

| د مطالبو سرلیکونه | د مطالبو شرح | |
|---|---|---|
| ۱- د لوست موضوع | هېډه د کوشانیانو د امپراتورۍ کلتوري پلازمینه (مرکز) | |
| ۲- ښوونیزې موخې: (پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي) | له زده کوونکو څخه هیله کېږي چې د لوست په پای کې لاندې موخو ته لاس رسی ومومي.<br>– زده کوونکي دې د کوشانیانو د زماني له کلتوري او هنري فعالیتونو سره آشنا شي.<br>– د ګندهارا په تیره د هډې په هنري ځانګړتیاوو دې پوه شي.<br>– د هغه مهال د هډې د خلکو له نوښتونو سره دې آشنا شي. | |
| ۳- د لوست ورکولو لارې چارې | فعال تدریس | |
| ۴- د لوست ورکولو اړین توکي | تخته کتاب، د هډې له آثارو څخه انځورونه | |
| ۵- د ارزښت موندنې چلند | ارزونه په تحریری او تقریری توګه | وخت په دقیقو |
| ۶- لومړنی کړنې | ښوونکی سلام اچوي او د زده کوونکو د حال پوښتنه کوي.<br>د هڅونې رامنځ ته کول:<br>ښوونکی له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي چې څوک ویلای شي چې هډه چیرته موقعیت لري؟ | ۱۰ دقیقې |

| ۱-۲ د ښوونکی د لوست ورکولو کړنې | د زده کوونکو د زده کولو کړنې | وخت په دقیقو |
|---|---|---|
| – ښوونکی د لوست سرلیک پر تخته باندې لیکي.<br>– ښوونکی د لوست متن لولي او زده کوونکو ته یې توضیح کوي.<br>– ښوونکي د زده کوونکو پوښتنو ته ځواب وایي.<br>– او د زده کوونکو فعالیت او معلومات ارزوي. | – زده کوونکي د لوست موضوع په خپلو کتابچو کې لیکي.<br>– د زده کوونکو له ډلې څخه درې تنه لوست تکراروي.<br>– زده کوونکي ځوابونه له ځانه سره لیکي. | ۳۵ دقیقې |

**۷- د لوست د متن پوښتنو ته ځواب:**

- د هډې د خلکو پلوی د بودایي هینایانا له نوې طریقې څخه چې پر بنسټ یې په کشمیر کې یوه لویه مذهبي جرګه جوړه شوه. د دغې جرګې مشري د هډې یوه مخور په غاړه درلوده او د لومړي ځل لپاره د کابل او هډې د بودا د مجسمو جوړول له هغه سره تړاو مومي.
- د ګندهارا ښوونځي له یوناني هنر څخه جوړ شوي دي.
- د هډې د ښوونځي پیدایښت د هغه مهال یو ډول نوی نهضت او غور ځنګ و.

**۸- د ښوونکی لپاره اضافي معلومات**

هډه د کوشانیانو په دوران کې له مهمو کلتوري مرکزونو څخه وه. د ګندهارا د هنري سبک کړنې په هډې کې پیل شوې او وروسته یې بیا نورو سیمو ته پراختیا وموندله. چینایي سیلاني هیون تسنګ د هډې په اړه ښه ډېر معلومات څرګند کړي دي. د دې سیمې لرغونی نوم هیلو و، په هغو زمانو کې ډېر بودایان د دیني مراسمو د زده کړې لپاره هډې ته راتلل. هډه د نوښتونو د مرکز، د بودایي مذهب د پیروانو په منځ کې د حد په توګه پیژندل شوې وه. د لومړی ځل لپاره د بودا مکمله مجسمه په هډې کې جوړه شوه. د هډې خلکو د هینایانا د سترې عرادې له طریقې څخه پلوي وکړه. د بودایانو هغه ستر مجلس چې په کشمیر کې جوړ شو او څلورم ستر دیني مجلس شمیرل کیده، مشر یې د هډې و. د ګندهارا هنري سبک چې له هډې نه پیل شو، په ټوله منځنۍ آسیا کې یې ستر رول درلود.


سرچینې:

۱. *تاریخ قدیم افغانستان (احمد علي کهزاد)*
۲. *تاریخ مختصر افغانستان (عبدالحی حبیبي)*
۳. *مدنیت هاي اولیه افغانستان (رسول باوري)*

**د (۱۶) لوست د تدریس لارښود پلان**

**د تدریس وخت (یو ساعت)**

**مضمون: تاریخ**

| د مطالبو سرلیکونه | د مطالبو شرح | |
|---|---|---|
| ۱- د لوست موضوع | باميان د بودايي عقيدې مرکز | |
| ۲- ښوونيزې موخې: (پوهنيزې، مهارتي او ذهنيتي) | له زده کوونکو څخه هيله کيږي چې د لوست په پای کې لاندې موخو ته لاس رسی ومومي.<br>– زده کوونکی دې د باميان له لرغونو آثارو سره آشناشي.<br>– د کوشانيانو په زمانې کې دې د باميان اهميت وپيژني.<br>– د ګندهارا د ښوونځی په اړه دې معلومات ترلاسه کړي.<br>– د بودا له سترو مجسمو سره دې آشنا شي. | |
| ۳- د لوست ورکولو لارې چارې | فعال تدريس | |
| ۴- د لوست ورکولو اړين توکي | تخته، درسي کتاب، د افغانستان نقشه او په باميانو کې د بودا د سترو مجسمو انځورونه | |
| ۵- د ارزښت موندنې چلند | ارزونه په تحريری او تقريری توګه | وخت په دقيقو |
| ۶- لومړنی کړنې | ښوونکی سلام اچوي او د زده کوونکو د حال پوښتنه کوي. | ۱۰ دقيقې |
| | د هڅونې رامنځته کول: ښوونکی زده کوونکو ته د بودا د يوې سترې مجسمې انځور ښيي او پوښتنه کوي چې دغه انځور پيژنئ. | |

| ۱-۲ د ښوونکی د لوست ورکولو کړنې | د زده کوونکو د زده کولو کړنې | وخت په دقيقو |
|---|---|---|
| – ښوونکی د لوست سرلیک پر تخته باندې لیکي.<br>– ښوونکی د کتاب له مخې لوست لولي او د مهمو ټکو په اړه يې زده کوونکو ته توضيحات ورکوي.<br>– ښوونکی د زده کوونکو پوښتنو ته ځواب وايي<br>– ښوونکی یو ځل بیا لوست توضیح کوي.<br>– د زده کوونکو پوهه ارزوي. | – زده کوونکي هغه په خپلو کتابچو کې لیکي.<br>– درې تنه زده کوونکي د کتاب متن لولي.<br>– زده کوونکي ځوابونه په خپلو کتابچو کې لیکي.<br>– زده کوونکي غوږ ږدي. | ۳۵ دقیقې |

**۷- د لوست د متن پوښتنو ته ځواب:**

– هیون سنګ لیکي چې بامیان مهم بودايي مرکز دی. په لسګونو بودايي مدرسې په دغه ښار کې شتون لري. د ښوونکو شمير يې زرهاوو تنو ته رسيږي. زیارت کوونکي له لیرې ځایونوڅخه دلته راځي.
– د بامیان په سمڅو کې له مجسمو سربیره په زړه پورې انځورونه په غوړین رنګ سره تر سترګو کیږي چې په نړۍ کې پخوانی غوړین رنګ دی چې په کارول شوی دی.
– بامیان د ملګرو ملتونو د نړۍ د کلتوري میراثونو له لوري د یوې کلتوري حوزې په توګه پیژندل شوی دی.

**۸- د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

بامیان له دوو لوریو په پخواني تاریخ کې ډېر اهمیت لري. لومړی دا چې د بودایانو مهم عبادتي او عقیدتي مرکزو او دویم دا چې د وریښمو د واټ سهیلي برخه له همدغه مرکز څخه تیریده دغه دوه عامله د دې سبب شول چې له ایران څخه هم د بودايي مذهب مینه وال دلته راشي. او هم هندي او رومي سوداګران دغه مرکز ته مخه کړې او له همدې لارې څخه د آسیا براعظم ختیځ او لویدیځ ته تګ او راتګ وکړي.
په بامیانو کې د بودا د دوو سترو مجسمو شتون، چې یوه يې صلصال او بله يې شمامه نومیده دغه مرکز ته ځانګړې شهرت ورکړی و. د صلصال مجسمې ۵۵ متره او شمامې ۳۵ متره لوړ والی درلود. چې په ۲۰۰۱ میلادي کال کې له منځه یو وړل شوې.

**د (۱۷) لوست د تدریس لارښود پلان**

**د تدریس وخت (یو ساعت)**

**مضمون: تاریخ**

| **د مطالبو سرلیکونه** | **د مطالبو شرح** | |
|---|---|---|
| **۱- د لوست موضوع** | **آیا یفتلیان پیژنې؟** | |
| **۲- ښوونیزې موخې: (پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي)** | له زده کوونکو څخه هیله کیږي چې د لوست په پای کې لاندې موخو ته لاس رسی ومومي.<br>– د یفتلیانو له نوم او ریښې سره آشنا کیدل.<br>– د یفتلیانو د امپراتورۍ له پولو سره آشنا یي ترلاسه کول.<br>– د یفتلیانو د مشهورو امپراتورانو له نومونو سره آشنا کیدل.<br>– د مذهبي تعصب زیانونو ته د زده کوونکو پام اړول. | |
| **۳- د لوست ورکولو لارې چارې** | فعال تدریس | |
| **۴- د لوست ورکولو اړین توکي** | د لوست کتاب، تخته، د افغانستان تاریخي نقشه | |
| **۵- د ارزښت موندنې چلند** | ارزونه په تحریري او تقریري توګه | وخت په دقیقو |
| **۶- لومړنی کړنې** | ښوونکی سلام اچوي او د زده کوونکو د حال پوښتنه کوي.<br>د هڅونې رامنځ ته کول:<br>ښوونکي د لوست سرلیک لولي، د زده کوونکو پاملرنه ورته را اړوي او وايي. آیا تاسو د یفتلیانو په اړه څه اوریدلي دي | ۱۰ دقیقې |

| ۱ - ۲ د ښوونکي د لوست ورکولو کړنې | د زده کوونکو د زده کولو کړنې | وخت په دقیقو |
|---|---|---|
| – د لوست سرلیک پر تخته لیکي.<br>– ښوونکی د کتاب متن زده کوونکو ته لـولي او د مهمو ټکو په اړوند یې توضیحات ورکوي.<br>– ښوونکی د زده کوونو پوښتنو ته ځواب وایي.<br>– ښوونکی یو ځل بیا درس توضیح کوي.<br>– د زده کوونکو زده کړه ارزوي. | – زده کوونکي د تختې څخه لیکنې په خپلو کتابچو کې لیکي.<br>– ۳ تنه زده کوونکي په نوبت سره یو په بل پسې د لوست متن لولي.<br>– زده کـوونکي ځوابونـه پـه خپلـو کتابچو کې لیکي.<br>– زده کوونکي پاملرنه کوي. | ۳۵ دقیقې |

**۷- د لوست د متن پوښتنو ته ځواب:**

– په تاریخي متونو کې یفتلیان، هفتالیان، خیونیتیان او یفتلیان یا د شوي دي او اعرابو بیا هیاطله بلل.
– د یفتلیانو په سیاسي تاریخ کې مهراکولا ډېر مهم شمیرل کیږي. ده خپله امپراتوري پراخه کړه او ګوپتایان یې له منځه یوړل.
– یفتلیانو عمدتاً د لمر نمانځنه کوله او د بودا یي دین په خلاف یې چلند کاوه. د لمر نمانځنې یوه مر مرینه مجسمه د خیر خانې مینې په غاښې کې موندل شوې ده. چې د سوریا د مجسمې په نامه یاده شوې ده.

**۸- د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

یفتلیان سپین پوستکي وو، په تاریخي متونو کې د هفتالیانو، یفتلیانو او خنوینتانو په نامه یاد شوي دي. اعرابو به دوی ته هیاطله ویل. دغه خلک چې د محلي واکمنانو برخلاف د کوشانیانو له پاتې شونو څخه وو. په یرغلونـو یـې پیـل وکړ. په لومړی سر کې یې د افغانستان شمالي سیمې تر خپلې ولکې لاندې راوستې او وروسته یې د کابل، بامیان او غزني سیمې هم په خپلې واکمنۍ پورې وتړلې او د خپلې امپراتورۍ پولې یې د هند تـر شـمالي سـیمو وغزولـې او ګوپتایي حاکمانو ته یې ماته ورکړه. یفتلیانو د لمر نمانځنه کوله او د بـود ایـي دیانـت مخـالف وو دوی د بودایـانو مهم مرکزونه وران کړل. خلک یې د بودایي دین پریښودو ته هڅول او آن تهدیدول یې. د دوی له مهمو مرکزونو څخه یو هم د خیر خانې مینې غاښې دي چې د کابل ښار په شمالي برخه کې موقعیت لري چې لـه همدغـه ځایـه څخه د سوریا مجسمه کشف شوې ده.
د دې لړۍ مشهور امپراتوران عبارت دي له: ایفتالتو، اختنور، تورمانا او مهراکولا څخه.

سرچینې:


۱. *تاریخ قدیم افغانستان (احمد علي کهزاد)*
۲. *تاریخ مختصر افغانستان (عبدالحی حبیبي)*
۳. *مدنیت های اولیه افغانستان (رسول باوري)*

**د (۱۸) لوست د تدریس لارښود پلان**

**د تدریس وخت (یو ساعت)**

**مضمون: تاریخ**

| | | |
|---|---|---|
| **د مطالبو سرلیکونه** | **د مطالبو شرح** | |
| **۱- د لوست موضوع** | آیا د مصر د تمدن په اړه معلومات لرئ؟ | |
| **۲- ښوونیزې موخې: (پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي)** | له زده کوونکو څخه هیله کیږي چې د لوست په پای کې لاندې موخو ته لاس رسی ومومي.<br>– زده کوونکي دې د مصر له پخواني تمدن سره آشنا شي.<br>– زده کوونکي دی د مصر د تمدن بیلوونکي اړخونه وپیژني.<br>– زده کوونکي دې د مصر اهرامونه او د هغوی تاریخ وپیژني.<br>– زده کوونکي دې سوچ وکړي چې دغه اهرامونه یې څرنګه جوړ کړي دي؟ | |
| **۳- د لوست ورکولو لارې چارې** | فعال تدریس | |
| **۴- د لوست ورکولو اړین توکي** | تخته، نقشه، د پخوانۍ نړۍ نقشه، کتاب | |
| **۵- د ارزښت موندنې چلند** | ارزونه په تحریری او تقریری توګه | وخت په دقیقو |
| **۶- لومړنی کړنې** | ښوونکی سلام اچوي او د زده کوونکو د حال پوښتنه کوي.<br>د هڅونې رامنځ ته کول:<br>ښوونکی د اهرامونو یو انځور زده کوونکو ته ورښیي او هغوی پوښتي چې آیا تاسو دغه انځور پیژنئ؟ | ۱۰ دقیقې |

| ۱ - ۲ د ښوونکی د لوست ورکولو کړنې | د زده کوونکو د زده کولو کړنې | وخت په دقیقو |
|---|---|---|
| – ښوونکی دلوست سرلیک پرتخته لیکي<br>– ښوونکی دکتاب متن لولي او د مهمو ټکو په اړه زده کوونکو ته معلومات ورکوي.<br>– ښوونکی د زده کوونکو پوښتنو ته ځواب وایي.<br>– ښوونکی یوځل بیا لوست توضیح کوي.<br>– د زده کوونکو زده کړه ارزوي. | – زده کوونکي د خپل ښوونکي لیکنې په خپلو کتابچو کې لیکي.<br>– درې تنه زده کوونکي په نوبت سره د کتاب متن لولي.<br>– زده کوونکي ځوابونه په خپلو کتابچو کې لیکي.<br>– زده کوونکي پاملرنه کوي. | ۳۵ دقیقې |

**۷- د لوست د متن پوښتنو ته ځواب**:

– د لومړی ځل لپاره انځوریز لیک مصریانو رامنځ ته کړ. په دې لیک کې هره نښه د یوه بیان لپاره ټاکل شوې وه. دغه لیک یې هیروغلیف باله چې د سپیڅلې حکاکی معنا ورکوي.
– مصریانو په معماری کې ډیر پرمختګ کړي و چې ښه بیلګه یې مصری اهرامونه دی چې د لرغوني نړی له عجایبو څخه شمیرل کیږي.
– مصریانو پراخه سوداګریزې اړیکې درلودې چې ډیره ښه بیلګه یې کولای شو لاجوردي ډبرې وبولو چې له میلاده کابو درې زره کاله دمخه له افغانستان څخه مصر ته وړل شوې وې.

**۸- د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

د نیل سیند د مصر د مدنیت په رامنځ ته کیدو کې یو سترلامل پیژندل شوی دی. له میلاده کابو ٤ زره کاله دمخه مصري مدنیت رامنځ ته شو. دغه مدنیت د ممیزاتو او مشخصاتو لـه مخې لـه نـورو مـدنیتونو څخـه دمخـه دی. د لومړي ځل لپاره سیاسي نظام د فرعونیانو په لړۍ کې رامنځ ته شو. انځوریز لیـک یـې رامنځتـه کـړ چـې د هیـرو غلیف په نامه یاد شوی دی چې د ټاکلې افادې لپاره یې مشخص انځور پـه کـار اوه او مقدسـه حکـاکي یـې هـم ورته ویله. په پخواني مصر کې معماري یو بل ستر کار دی چې لا تر اوسه د لرغونې نړۍ پـه خـاطرو کـې ژونـد کوي.

مصري اهرامونه داسې جوړ شوي چې د ټولې ورځې په اوږدو کې د ننه په همدغو اهرامونو کـې د لمـر وړانګـې شتون لري، د ډبرو د لیږد څرنګوالی هم په خپل وار سره د اړونده معمـارانو او مهندسـینو د ځانګړې پـوهې نښـه نښانه ده. دغه درې اهرامونه چې د کیوپس، کیفرن او میکرینوس په نومونو یادیږي، په نړیوالو میراثونو کې شـامل شوي دي. ١٦ تنو مصري فرعونیانو له لرغوني زماني څخه تر وروستي دوران پورې پر مصر باندې ټولواکي کـړې ده چې له دغو ١٦ تنو څخه مشهور یې عبارت وو له: توتن خامن، امینهوتیپ، اخناتون او ځینو نورو څخه.

سرچینې:


*١- تاریخ جهان باستان (سعد الدین هاشمی).*
*٢- تاریخ شرق باستان (دکتر حسین علی محسن).*

د (۱۹) لوست د تدریس لارښود پلان

د تدریس وخت (یو ساعت)

مضمون: تاریخ

| د مطالبو سرلیکونه | د مطالبو شرح | |
|---|---|---|
| ۱- د لوست موضوع | د بین النهرین له لرغوني تمدن سره آشناشيء. | |
| ۲- ښوونیزې موخې: (پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي) | له زده کوونکو څخه هیله کیږي چې د لوست په پای کې لاندې موخو ته لاس رسی ومومي.<br>– د بین النهرین له اصطلاح سره دې آشنا شي.<br>– د بین النهرین لرغوني سیمې دې وپیژني.<br>– د هغې زماني نوښتونه دې تشریح کړي. | |
| ۳- د لوست ورکولو لارې چارې | فعال تدریس | |
| ۴- د لوست ورکولو اړین توکي | تخته، د لرغوني نړۍ نقشه، د لوست کتاب | |
| ۵- د ارزښت موندنې چلند | ارزونه په تحریری او تقریری توګه | وخت په دقیقو |
| ۶- لومړنی کړنې | ښوونکی سلام اچوي او د زده کوونکو د حال پوښتنه کوي.<br>د هڅوني رامنځ ته کول:<br>ښوونکی له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي چې: تاسو د میخي لیک او میزو پوتامیا د نامه په اړه څه اوریدلي دي؟<br>زده کوونکي ځواب ورکوي. | ۱۰ دقیقې |



| ۱ - ۲ د ښوونکی د لوست ورکولو کړنې | د زده کوونکو د زده کولو کړنې | وخت په دقیقو |
|---|---|---|
| - ښوونکی د لوست سرلیک په تخته لیکي.<br>- ښوونکي د کتاب متن لولي.<br>- ښوونکی د بین النهرین موقعیت په نقشه کې ښیي او د زده کوونکو پوښتنو ته ځواب وایي.<br>- یو ځل بیا لوست توضیح کوي او د زده کوونکو پوهاوی ارزوي. | - زده کوونکي د خپل ښوونکي لیکنې په خپلو کتابچو کې لیکي.<br>- دري تنه زده کوونکي په نوبت سره د کتاب متن په تکراري توګه لولي.<br>- زده کوونکي ورته پاملرنه کوي.<br>- زده کوونکي ځوابونه له ځانه سره لیکي.<br>- زده کوونکي پاملرنه کوي. | ۳۵ دقیقې |

**۷- د لوست د متن پوښتنو ته ځواب:**

- یونانیانو بین النهرین ته میزو پوتامیا ویل.
- په لرغوني بین النهرین کې آشور یو له مهمو سیاسي مرکزونو څخه و.
- یو شمیر ټولواکان په دې مرکز کې واک ته ورسیدل چې له دې ډلې کولای شو د سارګون او آشور بانیپال نومونه د مثال په ډول یاد کړو.
- د بابل یو ټولواک د حمورابي په نامه یادیده چې د خپلو وګړو لپاره یې قانون جوړکړ چې د حمورابي د قانون په نامه یادیده. په دې قانون کې د ټولنې ژوند ته پاملرنه شوې وه.

**۸- د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

په بین النهرین کې یوه لرغوني سیمه تل حسونا نومول شوې چې تاریخ یې له میلاده مخکې پنځو زرو کلو ته رسیږي. په دې ځای کې د بیلابیلو کلتوري دورو لرغوني آثار موندل شوي دي. په بین النهرین کې د مدنیت د ودې او پرمختګ مهم لاملونه د دجلې او فرات سیندونه وو، په بین النهرین کې یو پخوانی او لرغونی سیاسي مرکز د آشور په نامه یادیږي چې ډیر ټولواکان لکه لومړی او دویم سارګون، آشور بناپال او نور په کې واک ته ورسیدل.

په بین النهرین کې یو بل ښار بابل و چې د سترې امپراتورۍ او ټولنیز سیستم په رامنځ ته کیدا کې یې ډیر مهم رول ولو باوه. په دې ښار کې یو ډېر لرغونی قانون بشري ټولنې ته وړاندې شو چې د حمورابي په نامه یادیږي. په دې قانون کې د ټولنیز ژوند بیلابیلو اړخونو ته پاملرنه وشوه. په دې قانون کې ګناه کارو وګړو ته د سزاورکول، د کر نیز نظام او د مسافرتي مسایلو پورې اړوند موضوعات ځای په ځای شوي و. دغه لړۍ د کاستیانو په مټ له منځه ولاړه. کاستیانو ترپنځوسوو کلو پورې په دې برخې باندې واکمني وکړه. کلدانیانو هم د یوې ځواکمنې لړۍ په توګه په بین النهرین کې عمده رول لوبولی دی.

سرچینې:


٤. *د افغانستان پخوانی تاریخ (احمد علي کهزاد)*
٥. *د افغانستان لنډ تاریخ (عبدالحی حبیبي)*
٦. *افغانستان په لرغوني زماني کې (رسول باوري)*

**د (۲۰) لوست د تدریس لارښود پلان**

**د تدریس وخت (یو ساعت)**

**مضمون: تاریخ**

| **د مطالبو سرلیکونه** | **د مطالبو شرح** | |
|---|---|---|
| **۱- د لوست موضوع** | آیا د ایران د لرغونې تمدن په اړه معلومات لرئ؟ | |
| **۲- ښوونیزې موخې: (پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي)** | له زده کوونکو څخه هیله کیږي چې د لوست په پای کې لاندې موخو ته لاس رسی ومومي.<br>– د ایران له لرغوني تمدن سره د زده کوونکو اشنایي.<br>– د ایران له مهمو لرغونو محلاتو سره آشنا کیدل.<br>– د ایران له مهمو او لرغونو سلسلو سره پیژندګلوي. | |
| **۳- د لوست ورکولو لارې چارې** | فعال تدریس | |
| **۴- د لوست ورکولو اړین توکي** | د لوست کتاب، تخته، د اسیا تاریخي نقشه | |
| **۵- د ارزښت موندنې چلند** | ارزونه په تحریری او تقریری توګه | وخت په دقیقو |
| **۶- لومړنۍ کړنې** | ښوونکی سلام اچوي او د زده کوونکو د حال پوښتنه کوي.<br>د هڅونې رامنځ ته کول:<br>ښوونکی پوښتنه کوي چې ایا د ایران لـه نامه سره آشنایي لرئ؟ زده کوونکي ځواب وایي. | ۱۰ دقیقې |

| ۱ - ۲ د ښوونکی د لوست ورکولو کړنې | د زده کوونکو د زده کولو کړنې | وخت په دقیقو |
|---|---|---|
| – ښوونکی د لوست سرلیک پرتخته باندې لیکي.<br>– ښوونکی د لوست متن د کتاب له مخې لولي.<br>– ښوونکی د زده کوونکو پوښتنو ځوابونه وايي.<br>– ښوونکی لوست یو ځل بیا توضیح کوي.<br>– ښوونکی د زده کوونکو پوهیدنه ارزوي. | – زده کوونکي يې په کتابچو کې لیکي<br>– دري تنه زده کوونکي په خپله خوښه کتاب له مخه لولي.<br>– زده کوونکي ځوابونه په خپلو کتابچو کې لیکي.<br>– زده کوونکي غوږ ږدي. | ۳۵ دقیقې |

**۷- د لوست د متن پوښتنو ته ځواب:**

– د سیالك د لرغوني تپې وګړو له مسې لوښو سره آشنا يې لرله. د نباتاتو کرنه يې دود کړې وه. د ګاوندیانو لکه منديګك، د نمازګاه تپه او دسند د مدنیت له خلکو سره یې اړیکې درلودې. په دغه ځای کې د لومړنی مدنیت نښې لیدل کیږي.

– لوی کوروش د هخامنشیانو د امپراطورۍ بنسټ کیښود.

– ساسانیان د ایران د پخواني تاریخ وروستنی لړۍ ده چې د مسلمانانو له خوا راوپرزیده.

**۸- د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

ایران د افغانستان له ګاونډیو هیوادونو څخه یو هېواد دی چې پخوانی تاریخ لري. د جیروفت، شوش، سیالك تپې او نور آثار له لرغونو زمانو څخه استازیتوب کوي چې تاریخ یې له میلاده د مخه درې نه تر پنځو زرو کلو پورې رسیږي. د هیرودت په وینا یو تن چې دایاکو نومیده له میلاده مخکې په لسمه پیړۍ کې د مادیانو قبایل سره یو کړل او د ماد په نامه یې د یوې امپراطورۍ بنسټ کیښود. دغه لړۍ د کوروش په مټ له منځه ولاړه. او له میلاده ۵۵۳ کاله وړاندې د هخامنشیانو د امپراتورۍ بنسټ کیښودل شو. هخامنشیانو ښه ډېر اسناد پر ځای پریښي دي. د بیستون کتیبه، د جمشید تخت او نور د دغو آثارو له ډلې څخه دي. کوروش د امپراتورۍ بنسټ ایښوونکی و. د هغه زوی کمبوجیه د خپل هیواد پولې تر مصر پورې ورسولې. هغه مهال په یونان کې فلیپ او ترې راوروسته لوی سکندر واکمني کوله. مقدوني سکندر له میلاده د مخه په ۳۳۵ کال کې هخامنشیانوته ماته ورکړه. او ټول فارس يې تر خپلې ولکې لاندې راوست. دلوی سکندر تر مړینې وروسته د یونانیانو لړۍ له میلاده دمخه تر دویمې پیړۍ پورې په فارس باندې خپله واکمني وچلوله. له دې وروسته اشکانیان ورپسې ساسانیان واك ته ورسیدل چې په اوومې میلادي پیړۍ کې د مسلمانانو له لوري راوپرزیدل.

**د (۲۱) لوست د تدریس لارښود پلان**

**د تدریس وخت (یو ساعت)**

**مضمون: تاریخ**

| **د مطالبو سرلیکونه** | **د مطالبو شرح** | |
|---|---|---|
| **۱- د لوست موضوع** | د هندوستان له تمدن سره آشنا شئ. | |
| **۲- ښوونیزې موخې (پوهنیزې، مهارتي، ذهني)** | له زده کوونکو څخه هیله کیږي چې د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي.<br>- د هند له لرغوني مدنیت سره د زده کوونکو آشنا کیدل.<br>- د هند له مهمو لرغونو سیمو سره د زده کوونکو آشنا کیدل.<br>- د هند د تاریخ له لومړنیو پېرېو سره آشنا کیدنه. | |
| **۳- د تدریس چلند** | فعال تدریس | |
| **۴- د لوست ورکولو اړین توکي** | درسي کتاب، تخته، او د آسیا نقشه. | |
| **۵- د ارزونې څرنګوالی** | په تحریری او تقریری توګه | وخت په دقیقو |
| **۶- لومړنی کړنې** | لومړی کړنې او د هڅونې رامنځته کول، ښوونکی سلام اچوي او د زده کوونکو د حال پوښتنه کوي او بیا د پوښتنې په توګه په ټولګي کې وایي: آیا تاسې پوهیږئ چې لرغونی هند څرنګه و؟ او څه ډول مدنیت یې درلود؟ | ۱۰ دقیقې |

| ۱-۲ د ښوونکی د لوست ورکولو کړنې | د زده کوونکو د زده کولو کړنې | وخت په دقيقو |
|---|---|---|
| - ښوونکی د لوست سرلیک پرتخته باندې لیکي.<br>- ښوونکی د کتاب له مخې لوست لولي.<br>- ښوونکی د زده کوونکو پوښتنو ته ځواب وايي.<br>- ښوونکی یو ځل بیا لوست توضیح کوي.<br>- ښوونکی د زده کوونکو پوهه ارزوي. | - زده کوونکي یې یادداښت کوي.<br>- درې تنه زده کوونکي درس تکراروي.<br>- زده کوونکي په خپلو کتابچو کې ځوابونه لیکي.<br>- زده کوونکي غوږ نیسي. | ۳۵ دقيقې |

**۷- د لوست د متن پوښتنو ته ځواب:**

۱. له میلاده کابو ۳ زره کاله دمخه د هند لرغونی مدنیت د هند په شمال لویدیځ کې د موهنجودارو او هړپې په سیمو کې منځ ته راغلی دی.

۲. په لرغوني هند کې څلورو ټولنیزو پوړیو (طبقو) شتون درلود چې د کشتریه، برهمن، ویسه او شودرا په نامه یادیدلې.

۳. د ګوپتایانو نومیالی امپراتور اشوکا و چې بودایي دین ته یې ډیره پراختیا وکړه.

**۸- د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

د هړپه تمدن: له میلاده درې زره کاله دمخه یو ډیر روښانه تمدن د هند په شمال لویدیځ کې وځلید. په دې وخت کې د هند وګړي په کرنې او څاروي روزنې لګیا وو. دوی له فلزاتو ګټه اخیستنه پیل کړې وه. هندیان لومړني خلک وو چې د پنبې کرنه یې کوله، موهنجودارو په لرغوني هند کې یو بل لرغونی ښار دی چې د هړپه له مدنیت سره یې برابره وده وکړه. د موهنجودارو کنډوالې ښیي چې دلته د ښار جوړولو ځانګړی سیستم شتون درلود. دلته هغه ډول منظمو کوڅو چې پلان یې له وړاندې جوړ شوی و، شتون درلود. دلته د کانالیزاسیون یو ښه منظم سیستم او د اوبو د زیانونو څخه د ساتنې لپاره د ځانګړو ویالو سیستم هم رامنځ ته شوی و.

**د (۲۲) لوست د تدریس لارښود پلان**

**د تدریس وخت (یو ساعت)**

**مضمون: تاریخ**

| **د مطالبو سرلیکونه** | **د مطالبو شرح** | |
|---|---|---|
| **۱- د لوست موضوع** | آیا د چین د لرغوني تمدن په اړه معلومات لرئ؟ | |
| **۲- ښوونیزې موخې (پوهنیزې، مهارتي، ذهني)** | له زده کوونکو څخه هیله کیږي چې د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي.<br>– د چین د هیواد د جغرافیایي موقعیت او تمدن سره آشنا کیدنه.<br>– د چین هیواد له مهمو لرغونو سیمو سره آشنا کیدل.<br>– د چین د لومړنیو پیړیو له تاریخ سره آشنایي. | |
| **۳- د تدریس چلند** | فعال تدریس | |
| **۴- د لوست ورکولو اړین توکي** | درسي کتاب، تخته، د آسیا نقشه. | |
| **۵- د ارزونې څرنګوالی** | تحریری او تقریری ارزونه | وخت په دقیقو |
| **۶- لومړنی کړنې** | ښوونکی سلام اچوي او د زده کوونکو د حال پوښتنه کوي او بیا د انګیزې د رامنځته کولو په موخه له زده کوونکو پوښتي.<br>د چین په اړه څه پوهیږئ؟ آیا تاسو چینایي مالونه لیدلي دي او که لیدلي مو وي، چیرته مو لیدلي دي؟ | ۱۰ دقیقې |

| ۱ - ۲ د ښوونکی د لوست ورکولو کړنې | د زده کوونکو د زده کولو کړنې | وخت په دقیقو |
|---|---|---|
| – ښوونکی د لوست سرلیک پرتخته باندې لیکي.<br>– ښوونکی د کتاب له مخې اړوند لوست لولي.<br>– ښوونکی د زده کوونکو پوښتنو ته ځواب وايي.<br>– ښوونکی یو ځل بیا لوست توضیح کوي. | – زده کوونکي یادداښت کوي.<br>– درې تنه زده کوونکي د کتاب درس له مخې لولي.<br>– زده کوونکي یولړ پوښتنې کوي.<br>– زده کوونکي غوږ نیسي. | ۳۵ دقیقې |

**۷- د لوست د متن پوښتنو ته ځواب:**

۱. د چین وګړو عقیده درلوده چې په هرې ناروغۍ چې پخوانیو خلکو ژوند له لاسه ورکړی دی، که چیرې څوک د هغوی په قبر لاس ووهي، نو دغه تن به په هماغه ناروغۍ اخته شي.

۲. د چین ډیر لرغونی انسان په (جاوکوتیان) کې کشف شوی دی. دغه ځای پیکن ته نږدې موقعیت لري.

۳. شانګ، چو او تسه ین، د لرغوني چین له نومیالیو کورنیو څخه وې.

**۸- د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

لومړنی اثر چې د چین هیواد د عمومي تاریخ په اړه لیکل شوي، هغه د چینایي پوه (سوما تسه ین) په زیار رامنځ ته شوی دی، چې له میلاده وړاندې له ۱٤٥ – ۹۰ کال پورې یې ژوند کاوه. دغه شخص د یوه ستوري پیژندونکی زوی و، ده ډیرو هیوادونو ته سفرونه وکړل او ډیرې افسانې یې ولیکلې. ده کابو یو سلو دیرش ټوکه تاریخي کتابونه تالیف کړل. د دغو مطالبو ډیره برخه د (هوان تي) کورنۍ پورې اړوند معلومات دي.

د (۲۳) لوست د تدریس لارښود پلان

د تدریس وخت (یو ساعت)

مضمون: تاریخ

| د مطالبو سرلیکونه | د مطالبو شرح | |
|---|---|---|
| ۱- د درس موضوع | آیا پوهیږئ چې د لرغوني یونان تمدن څرنګه پیل شو؟ | |
| ۲- ښوونیزې موخې (پوهنیزې، مهارتي، ذهني) | له زده کوونکو څخه هیله کیږي چې د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي.<br>– د یونان له جغرافیایي موقعیت سره آشنایي.<br>– د یونان له مهمو سیمو سره آشنا کیدنه.<br>– د لرغوني یونان له مهمو پیښو سره آشنا کیدل.<br>– د یونان له سترې امپراتورۍ سره آشنا کیدل. | |
| ۳- د تدریس چلند | فعال تدریس | |
| ۴- د لوست ورکولو اړین توکي | درسي کتاب، تخته، د آسیا او اروپا نقشه. | |
| ۵- د ارزونې څرنګوالی | تحریری او تقریری ارزونه | وخت په دقیقو |
| ۶- لومړنی کړنې | ښوونکی د السلام علیکم تر ویلو وروسته، د زده کوونکو د حال پوښتنه کوي. او د یوه متوجه کوونکي حالت د رامنځ ته کولو لپاره د یوې موضوع یا یوې کړنې په وړاندې کولو سره د تدریس لومړنی کړنې او د هڅونې د رامنځته کولو لپاره زمینه برابروي. | ۱۰ دقیقې |

| ۱-۲ د ښوونکی د لوست ورکولو کړنې | د زده کوونکو د زده کولو کړنې | وخت په دقیقو |
|---|---|---|
| – ښوونکی د لوست سرلیک پرتخته باندې لیکي.<br>– ښوونکی د کتاب له مخې اړوند لوست لولي.<br>– ښوونکی د زده کوونکو پوښتنو ته ځواب وايي.<br>– ښوونکی یو ځل بیا لوست توضیح کوي. | – زده کوونکي یادداښت کوي.<br>– دوه یا درې تنه زده کوونکي د کتاب له مخې درس لولي.<br>– زده کوونکي پوښتنې کوي.<br>– زده کوونکي د ښوونکي خبرو ته پاملرنه کوي. | ۳۵ دقیقې |

**۷- د لوست د متن پوښتنو ته ځواب:**

۱. توسیدس یوناني مورخ چې له میلاده مخکې په څلورمې پیړۍ کې یې ژوند کاوه. په دې آند و چې د کلیو او ښارونو وراني ویجاړې د هغو انسانانو د کار لاس ته راوړنې دي چې له دوی دمخه یې ژوند کاوه.

۲. د میسني تمدن د کرت او یونان د تاریخ یو ځلانده دوران دی. دغه تمدن له شپاړسمې څخه تر لسمې قبل المیلاد پیړۍ پورې پایښت درلود.

۳. دوریان له میلاده دمخه په لسمې پیړۍ کې واک ته ورسیدل چې د اوسپنې له عصر سره یې سمون خوړ. په همدې وخت کې د هومر مشهور داستانونه (الیاد، ادیسه) تالیف شول چې دغه داستانونه له دولسمې څخه تر اتمې، قبل المیلاد پیړۍ پورې پیښې څرګندوي.

**۸- د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

د یونان تمدن هغه تمدن و چې لویدیځی نړۍ ورڅخه الهام واخیست او د خپل کلتور بنسټ یې پرې کېښود. د لرغونی یونان لومړنی تمدن د کرت په نامه یادیږي. کرت د لرغونی تمدن یوه ټاپو وزمه وه. کرت یو پر مختللی تمدن درلود چې د مصر او بین النهرین له تمدن سره یې سیالی کوله. په کرت کې مرکزی واکمنی شاوخوا له میلاده ۲۰۰۰ کاله وړاندې رامنځته شوه. دغه تمدن د اریایی قبایلو د یرغل په پایله کې له منځه ولاړ.

یونانیان هغه اریایان دي چې له خپل اصلي ځای (اریانه ویجو) څخه شاوخوا له میلاده ۲۵۰۰ کاله وړاندې اروپا ته ولیږدیدل. او د یونان اصلی اوسیدونکي یې د ځان تابع کړل او د یو تمدن بنسټ یې کېښود چې د میسن په نامه یادیږي.

یونان له ټاپوګانو څخه جوړ هیواد دی. د یونان جغرافیایی موقعیت ددې لامل شو چې په یونان کې ډیر ښاري دولتونه رامنځته شي. ددغو ښاري دولتونو تر ټولو مشهور اتن او سپارت وو.

**د (۲٤) لوست د تدریس لارښود پلان**

**د تدریس وخت (یو ساعت)**

**مضمون: تاریخ**

| **د مطالبو سرلیکونه** | **د مطالبو شرح** | |
|---|---|---|
| **۱- د درس موضوع** | آیا اوریدلي مو دي چې د لرغوني روم واکمنانو ته یې د اروپا واکمنان ویل؟ | |
| **۲- ښوونیزې موخې (پوهنیزې، مهارتي، ذهني)** | له زده کوونکو څخه هیله کیږي چې د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي.<br>– د روم له موقعیت سره آشنا کیدل.<br>– د لرغوني روم له مهمو سیاسي کورنیو سره آشنا کیدنه.<br>– د روم له مهمو تاریخي سیمو سره آشنا کیدل. | |
| **۳- د تدریس چلند** | فعال تدریس | |
| **۴- د لوست ورکولو اړین توکي** | درسي کتاب، تخته،د اروپا نقشه | |
| **۵- د ارزونې څرنګوالی** | تحریری او تقریری ارزونه | وخت په دقیقو |
| **٦- لومړنی کړنې** | ښوونکی د السلام علیکم تر ویلو وروسته، د زده کوونکو د حال پوښتنه کوي. او د هڅونې په رامنځ ته کولو سره د لوست د پیلولو لپاره زمینه برابروي. | ۱۰ دقیقې |

| ۱-۲ د ښوونکی د لوست ورکولو کړنې | د زده کوونکو د زده کولو کړنې | وخت په دقیقو |
| --- | --- | --- |
| – ښوونکی د لوست سرلیک پرتخته باندې لیکي.<br>– ښوونکی لوست د کتاب له مخې لولي.<br>– ښوونکی د زده کوونکو پوښتنو ته ځواب وايي.<br>– ښوونکی یو ځل بیا اړونده لوست توضیح او تشریح کوي. | – زده کوونکي یې په خپلو کتابچو کې لیکي.<br>– دوه یا درې تنه زده کوونکي لوست د کتاب له مخې لولي.<br>– زده کوونکي یولړ پوښتنې مطرح کوي.<br>– زده کوونکي د ښوونکي څرګندونو ته غوږ نیسي. | ۳۵ دقیقې |

**۷- د لوست د متن پوښتنو ته ځواب:**

۱. د روم لومړنی جمهوري نظام له دریو ځایونو اداره کیده: د مشرانو جرګه، سل کسیزه ټولیزه ټولنه (۱۰۰ کسیزه عمومي مجمع او د قبایلو ټولنه).

۲. رومیانو له میلاده د مخه په ۱۶۹ کال کې د مقدونیې ښار ونیو.

۳. د روم وروستنی امپراتور مارکوس اوریلوس نومیده چې له ۱۶۱ نه تر ۱۸۰ میلادي کلو پورې یې واکمنی درلوده.

**۸- د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

د روم ټولواکان: په هغه زمانه کې د پادشاه کلمه مفهوم نه بلکه د قبیلې مشر (Tribu) او د طایفې د ګډو ګټو آستازي و. ایتالیا له اوومې پیړۍ څخه وروسته د اوسپنې دویم عصر ته ورسیده. په دې زمانه کې اوسپنیز وسایل ډیر شول او چټکه وده رامنځته شوه. په همدې وخت کې د کار دویم ویش رامنځ ته شو او صنعت له کرنې نه بیل شو. د کار لومړنی ویش له کرنې څخه د ښارویو د روزنې بیل والی و.

**د (۲۵) لوست د تدریس لارښود پلان**

**د تدریس وخت (۱) درسي ساعت،**

**موضوع تاریخ**

| **د مطالبو سرلیکونه** | **د مطالبو شرح** | |
|---|---|---|
| **۱- د لوست موضوع** | له اسلام څخه مخکې د عربستان اوضاع | |
| **۲- ښوونيزې موخې (پوهنيزې، مهارتي، ذهني)** | هيله ده د لوست په پای کې زده کوونکي لاندې موخو ته ورسيږي:<br>– له اسلام څخه دمخه او په پيل کې د اعرابو له کلتوري اوضاع سره د زده کوونکو آشنا کيدل.<br>– د اسلام د مبارک دين له پيغام سره د زده کوونکو آشنا کيدل.<br>– د حضرت محمد (ص) له کړنو سره د زده کوونکو آشنا کيدل.<br>– د اسلام مبارک دين او برحق پيغمبر (ص) سنت ته د زده کوونکو پام رااړول. | |
| **۳- د لوست وړاندې کولو چلند** | فعال تدريس | |
| **۴- د لوست د وړاندې کولو اړين توکي** | د لوست کتاب، تخته او د عربستان نقشه | |
| **۵- د ارزونې څرنګوالی** | په تحريری او تقريری توګه | وخت په دقيقو |
| **۶- لومړنی کړنې** | ښوونکی سلام اچوي او د زده کوونکو د حال پوښتنه کوي او بيا د هځونې په رامنځته کولو سره نوی لوست پيلوي. | ۱۰ دقيقې |

| ۱-۲ د ښوونکی د لوست ورکولو کړنې | د زده کوونکو د زده کولو کړنې | وخت په دقیقو |
|---|---|---|
| – ښوونکی د لوست سرلیک پر تخته باندې لیکي.<br>– ښوونکی د لوست متن د کتاب له مخې لولي.<br>– د زده کوونکو پوښتنو ته ځواب وایي.<br>– ښوونکی د زده کوونکو زده کړه ارزوي. | – زده کوونکي یې په خپلو کتابچو کې لیکي.<br>– دوه درې تنه زده کوونکي په داوطلبانه توګه د لوست موضوع د کتاب له مخې لولي.<br>– زده کوونکي د ښوونکي ځوابونه په خپلو کتابچو کې لیکي.<br>– د ښوونکي خرګندونو ته غوږ ږدي. | ۳۵ دقیقې |

**۷- د لوست د متن د پوښتنو ځواب:**

۱. په عربستان کې هرې قبیلې ځانته بت جوړاوه او د هغه نمانځنه به یې کوله.
۲. د اسلام مبارک دین خلک د واحد خدای نمانځنې، ټولنیز عدالت، برابری او ورورولی ته رابلل.
۳. اسلام یو مکمل الهي دین دی.

**۸- د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

د عربستان ډیرو وګړو له اسلام څخه د مخه د بتانو عبادت کاوه او له لوی څښتن سره په شریک راوړلو کې یې ډیر افراط کاوه. او له واحد او لاشریک خدای (ج) نه پرته په خپلو لاسو د جوړو شویو بتانو عبادت ته معتقد وو. په هرې قبیلې، هرې طایفې او هر ښار کې ځانګړی بت و. او آن تر دې چې په هر کور کې به یو یا څو بتانو شتون درلود. د لوی څښتن په کور (کعبې) کې چې حضرت ابراهیم (ع) د لوی څښتن د عبادت لپاره کومه کوټه جوړه کړې وه. د جاهلیت د زماني اعرابو په کې ۳۶۰ بتان ځای په ځای کړي وو. د عربي قامونو اخلاق ډیر ناوړه وو. قمار وهنه او شراب څښل د دوی عادت ګرځیدلی و. دوی په دې اندازې بې رحمه او سخت زړي وو چې خپلې نوې زیږیدلې نجونې به یې د ننګ او شرم تر نامه لاندې او ځینو نورو به د ډیرې غریبۍ له ډاره خپل اولادونه ژوندي تر خاورو لاندې کول. په دوی کې چور چپاول، غلا غدی او نورو بدو کارونو عام رواج درلود. د ښځې مقام او منزلت ته یې هیڅ درناوی نه درلود او هغوی به یې د څارویو او سوداګریزو توکو په څیر خرڅولې. د دوی ډیرو لږو افرادو په سوداګریزو چارو کې ګډون کاوه. کرنه یې لږه وه یو څه افراد په کې شپانه او نورو ټولو د غلا او غدیو له لارې خپل ژوند پر مخ بیوه.

**د (۲۶) لوست د تدریس لارښود پلان**

**د تدریس ورکولو وخت (۱) درسي ساعت،**

**موضوع تاریخ**

| **د مطالبو سرلیکونه** | **د مطالبو شرح** | |
|---|---|---|
| **۱- د لوست موضوع** | د اسلام پیغمبر حضرت رسول اکرم (ص) ژوند سره آشنا کیدل | |
| **۲- ښوونیزې موخې (پوهاویزې، مهارتي، ذهنيتي)** | له زده کوونکو څخه هیله کیږي چې د لوست په پای کې دغه موخې ترلاسه کړي:<br>– د زده کوونکو آشنا کیدل د حضرت محمد (ص) د نوم، شجره، نصب او د کورنی ځرنګوالی سره.<br>– د حضرت محمد (ص) د ښو او نیکو اوصافو، خصلتونو او فضلیتونو سره د زده کوونکو اشنا کیدل.<br>– تر بعثته دمخه او وروسته په لنډه توګه د حضرت رسول اکرم (ص) له کړو وړو سره د زده کوونکو آشنا کیدل.<br>– د زده کوونکو آشنا کیدل د لومړنیو کسانو سره چې د اسلام څیځلې دین ته مشرفه شول. | |
| **۳- د لوست وړاندې کولو چلندونه** | فعال تدریس | |
| **۴- د لوست د وړاندې کولو اړین توکي** | لوستیز کتاب، تخته، د عربستان د هیواد نقشه | |
| **۵- د ارزونې ځرنګوالی** | په تحریری او تقریری توګه | وخت په دقیقو |
| **۶- لومړنی کړنې** | : ښوونکی سلام اچوي او د زده کوونکو د حال پوښتنه کوي او بیا د هځونې په رامنځته کولو سره د لوست د پیلولو لپاره زمینه برابروي. | ۱۰ دقیقې |

| ۱-۲ د ښوونکی د لوست ورکولو کړنې | د زده کوونکو د زده کولو کړنې | وخت په دقیقو |
|---|---|---|
| – ښوونکی د لوست سرلیک پر تخته بانـدې لیکي.<br>– ښوونکی د لوست متن د کتاب لـه مخـې لولي.<br>– ښوونکی د زده کوونکو پوښتنو ته ځوابونه وایي.<br>– ښوونکی د زده کوونکو زده کړه ارزوي. | – زده کوونکي یـې پـه خپلـو کتـابچو کې لیکي.<br>– درې تنه زده کوونکي پـه داوطلبانـه توګه لوست د کتاب له مخې لولي.<br>– زده کـوونکي د ښـوونکي ځوابونـه خپلو کتابچو کې لیکي.<br>– زده کوونکي د خپل ښـوونکي وینـا ته پاملرنه کوي. | ۳۵ دقیقې |

**۷- د لوست د متن د پوښتنو ځواب:**

۱. حضرت جبریيل امین د لوی ښښتن (ج) له لوري د نبـوت رسـالت او د اسـلام د مبـین دیـن د تبلیـغ پیغـام حضرت محمد مصطفی (ص) ته راوړ.

۲. کله چې حضرت نبي کریم (ص) په رسالت مبعوث شو ٤٠ کلن و.

۳. حضرت محمد (ص) د عبدالله زوی د عبدالمطلب لمسی او عبدالمطلب د هاشم زوی او د عبدمناف لمسی و.

**۸- د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

عبدالله او آمنه: عبدالمطلب د قریشو د قبیلې مشر و. ده لس زامن درلودل. کله چې عبدالله ځوانی ته ورسید نو عبدالمطلب ده ته د بني زهرې د طایفې د مشر لور آمنه د وهب لور په نکاح کړه. آمنه هم د خپل نسب، مقام او منزلت له مخې د قریشو له ډیرو سترو میرمنو ښځه وه. عبدالله لږه موده ژوندی و او بیا وفات شو. په دې وخت کې بي بي آمنه حامله وه، هغې د آثارو او نښو له مخې لیدل چې محمول یې د ځانګړي منزلت خاوند دی. حضرت محمد (ص) د عام الفیل، د ربیع الاول په دولسمه نیټه د دوشنبې په ورځ چې له ٥٧٠ زیږدیز (میلادي) کال سره سمون خوري د دې نړۍ پر مخ خپلې نازولې سترګې وغړولې. عبدالمطلب دغه نوی زیږیدلی ماشوم په خپله غیږ کې واخیست او هغه یې کعبې ته یوړ، هلته یې د لوی ښښتن په دربار کې د ثنا او دعا تر ویلو وروسته په دغه مبارک ماشوم باندې محمد نوم کیښود دغه نوم په اعرابو کې نوی و. هغوی د دغه نوم په اوریدو سره حیران شول.

**د (۲۷) لوست د تدریس لپاره لارښود پلان**

**د تدریس وخت (۱) درسي ساعت،**

**موضوع تاریخ**

| **د مطالبو سرلیکونه** | **د مطالبو شرح** | |
|---|---|---|
| **۱- د لوست موضوع** | د حضرت محمد (ص) د ژوندانه د پیر پېښې | |
| **۲- ښوونیزې موخې (پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي)** | هیله ده د لوست په پای کې زده کوونکي لاندې موخو ته ورسیږي:<br>– د غزواتو د رامنځ ته کېدو له لاملونو سره د زده کوونکو آشنا کیدل.<br>– د رسول اکرم (ص) له ځینو غزواتو سره د زده کوونکو آشنا کیدل.<br>– په غزواتو کې د مسلمانانو د بریالیتوب له رازونو سره د زده کوونکو آشنا کیدل.<br>– د غزواتو له لاس ته راوړنو سره د زده کوونکو آشنا کیدل. | |
| **۳- د لوست ورکولو چلندونه** | فعال تدریس | |
| **۴- د لوست د وړاندې کولو توکي** | د لوست کتاب، تخته | |
| **۵- د ارزونې چلند او څرنګوالی** | په تحریری او تقریری توګه | وخت په دقیقو |
| **۶- لومړنی کړنې** | ښوونکی سلام اچوي او د زده کوونکو د حال پوښتنه کوي:<br>ښوونکی د هڅونې په رامنځته کولو سره لوست پیلوي. | ۱۰ دقیقې |

| ۱ - ۲ د ښوونکی د لوست ورکولو کړنې | د زده کوونکو د زده کولو کړنې | وخت په دقیقو |
|---|---|---|
| – ښوونکی د لوست سرلیک پر تخته باندې لیکي.<br>– ښوونکی د لوست متن د کتاب له مخې لولي.<br>– ښوونکی د زده کوونکو پوښتنو ته ځواب وايي.<br>– ښوونکی اړوند لوست زده کوونکو ته توضیح کوي.<br>– ښوونکی د زده کوونکو زده کړه ارزوي. | – زده کوونکي يې په خپلو کتابچو کې لیکي.<br>– دوه درې تنه زده کوونکي په داوطلبانه توګه لوست د کتاب له مخې لولي.<br>– زده کوونکي د ښوونکي ځوابونه خپلو کتابچو کې لیکي.<br>– د ښوونکي خرګندونو ته غوږ ږدي. | ۳۵ دقیقې |

**۷- د لوست د متن د پوښتنو ځواب:**

۱. د مسلمانانو په وړاندې د کفارو او مشرکینو کړه وړه او ویناوې دښمنانه وې. هغوی مسلمانان تهدیدول، بندیزونه يې پرې لګول، اړیکې يې ورسره پرې کولې او جګړې يې ورسره کولې.

۲. لومړنی ستره غزوه د مسلمانانو او مشرکینو ترمنځ د بدر غزوه وه.

۳. د بدر، احد، خندق، تبوک، یرموک او حنین غزوې مهمې او سترې غزوې وې.

**۸- د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

د غزواتو په اړه:

قریشو هسې بهانې لټولې او په مدینې کې يې د مسلمانانو په چارو کې دښمنانه او مغرضانه لاس وهنې کولې، کله چې د اسلام مبارک دین په مدینې منورې کې ځای په ځای شو قریش په دې پوه شول چې د اسلام دین د ودې او پرمختیا په لور درومي او ورځ تر ورځې پیاوړی کیږي، ځکه نو هغوی هم د اسلام د سپیڅلي دین او مسلمانانو په وړاندې خپله کلکه دښمني پیل کړه او د جګړې لپاره يې پراخه چمتووالی ونیو. په داسې حال کې چې لوی څښتن (ج) مسلمانانو ته د صبر، عفوې، ښښنې او تیریدنې دستور ورکاوه. او ورته يې وفرمایل له جګړې څخه ځانونه وژغورئ او لمونځونه وکړئ. وروسته لدې د هجرت په نهم کال د عربستان د ټاپو وزمې د مشرکانو په حق کې د عام جنګ اعلان وشو، چې یابه ایمان راوړي او یابه شړل کیږي د اهل کتابو په هکله بله لاره وټاکل شوه او هغه دا وه چې له خپل دین سره به د اسلام په قلمرو کې اوسیږی، خو جزیه به ورکوي. سوره نساء (آیت شریف) کله چې د مسلمانانو ځواک ډیر شو، لوی څښتن (ج) هغوی ته اجازه ورکړه، خو جنګ يې واجب ونه ګرځاوه او وې فرمایل: د دښمن له جنګیالیو سره د مسلمانانو جنګیدلو ته اجازه ورکړل شوه. ځکه چې هغوی له دښمنانو څخه ډیرې نادودې لیدلې وې او لوی څښتن تعالی (ج) د هغوی په یاری قادر دی.

**د (۲۸) لوست د تدریس لپاره لارښود پلان**

**د تدریس وخت (۱) درسي ساعت،**

**موضوع تاریخ**

| **د مطالبو سرلیکونه** | **د مطالبو شرح** | |
|---|---|---|
| **۱- د لوست موضوع** | آیا د حضرت ابوبکر صدیق (رض) له خلافت سره آشنايي لرئ؟ | |
| **۲- ښوونیزې موخې (پوهنیزې، مهارتي، ذهنیتي)** | هیله ده د لوست په پای کې زده کوونکي لاندې موخو ته ورسیږي:<br>– د حضرت ابوبکر صدیق (رض) له نوم او شجرې سره د زده کوونکو آشنا کیدل.<br>– د حضرت ابوبکر صدیق (رض) خلافت ته د رسیدو له څرنګوالي سره د زده کوونکو آشنا کیدل.<br>– د حضرت ابوبکر صدیق (رض) له لومړنی خطبې سره د زده کوونکو آشنا کیدل.<br>– د حضرت ابوبکر صدیق (رض) له کړو وړو او سوبو (فتوحاتو) سره د زده کوونکو آشنا کیدل. | |
| **۳- د لوست ورکولو چلندونه** | فعال تدریس | |
| **۴- د لوست د وړاندې کولو توکي** | د لوست کتاب، تخته | |
| **۵- د جاجوني چلند او څرنګوالی** | په تحریری او تقریری توګه | وخت په دقیقو |
| **۶- لومړنی کړنې** | ښوونکی سلام اچوي او د زده کوونکو د حال پوښتنه کوي او بیا د هڅوني په رامنځته کولو سره نوی لوست پیلوي. | ۱۰ دقیقې |

| ۱-۲ د ښوونکی د لوست ورکولو کړنې | د زده کوونکو د زده کولو کړنې | وخت په دقیقو |
|---|---|---|
| – ښوونکی د لوست سرلیک پر تخته باندې لیکي.<br>– ښوونکی د لوست متن د کتاب له مخې لولي.<br>– ښوونکی د زده کوونکو پوښتنو ته ځواب وايي.<br>– ښوونکی د اړوند لوست مهم ټکي تشریح کوي.<br>– ښوونکی د زده کوونکو زده کړه ارزوي. | – زده کوونکي یې په خپلو کتابچو کې لیکي.<br>– دوه درې تنه زده کوونکي په داوطلبانه توګه لوست د کتاب له مخې لولي.<br>– زده کوونکي د ښوونکي ځوابونه خپلو کتابچو کې لیکي.<br>– زده کوونکي د خپل ښوونکي وینا ته غوږ نیسي. | ۳۵ دقیقې |

**۷- د لوست د متن د پوښتنو ځواب:**

۱. حضرت ابوبکر صدیق (رض) د حضرت رسول اکرم (ص) له رحلت وروسته په مدینه منوره کې د مهاجرینو او انصارو په یوه ستره ناسته کې د مسلمانانو له لوري د رایو په اتفاق سره د اسلام د لومړني خلیفه په توګه وټاکل شو.

۲. حضرت ابوبکر صدیق (رض) د خپلې خطبې په ترڅ کې خلک د لوی څښتن (ج) اطاعت او نبوي شریعت ته راوبلل او هغوی یې له ظلم او تیري کولو څخه په کلکه منع کړل.

۳. اوسنی سوریه (شام) عراق، بین النهرین او ځینې نورې سیمې د مسلمانانو په ولکه کې راغلې.

**۸- د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

د ابي قحافه د زوی حضرت ابوبکر صدیق (رض) او د اسلام لوري ته د خلکو په رابللو کې د هغه لیاقت او ارزښت.

حضرت ابوبکر صدیق (رض) چې څنګه د لوی څښتن پیام د حضرت رسول اکرم (ص) د رسالت او نبوت په اړوند له حضرت محمد(ص) څخه واورید چې دی په نبوت مبعوث او توظیف شوی، نو دغه خبره یې له هیڅ ډول پوښتنې او ځواب پرته ومنله او وې ویل (صدقت یارسول الله) او له دې سره سم د اسلام په مبارک دین مشرف شو.

ده درایت، عقل، پوهې، تدبیر، میړانې، او عدالت په لرلو سره په خپل قوم کې د یوه محبوب القلوب، پوه، د نرم خوی خاوند او یوه شریف او انصاف لرونکي سوداګر په توګه شهرت درلود. ده د اسلام په مبارك دین مشرفیدل په ډاګه په خلکو کې اعلان کړل دی له خلکو سره په ډیر صمیمانه چلند معروف و او دا چې ولې ده ته صدیق وایي محدثین روایت کوي چې کله حضرت رسول اکرم (ص) د نبوت او رسالت لومړنیو شپو ورځو کې حضرت ابوبکر (رض) ته د حرا د غار کیسه وکړه، نو هغه پرته له دې چې څنګه او ولې د (صدقت یا رسول الله) د جملې په ویلو سره د حضرت محمد (ص) پیغمبري تصدیق کړه چې له دې وروسته د رسول اکرم (ص) له لوري د صدیق لقب ورکړل شو. حضرت ابوبکر صدیق (رض) د رسول اکرم (ص) سره د مهاجرت له پیل څخه تل ملګری و چې دغه موضوع د قرآن کریم په مبارك آیت ثابته ده. هغه کومې معنوي او مادي قرباني چې د اسلام د مبارك دین د لوړتیا او مسلمانانو ته د چوپړ په لاره کې کړي، په هیڅ یوه مسلمان کې له هماغه ابتدا نه تراوسه مخینه نلري او نه به یې په راتلونکې کې څوك ولري. د ساري په ډول یوه ورځ چې په نبوي جومات کې د جهاد لپاره مالي مرسته ټولیده، هر چا له خپله کوره څه لږ او ډیر مالونه او پیسې راوړې خو حضرت ابوبکر صدیق (رض) چې څه په کور کې لرل، ټول یې راوړل، حضرت نبي کریم (ص) ورڅخه وپوښتل چې: په کور کې دې څه پریښودل؟ حضرت ابوبکر صدیق (رض) وویل: هیڅ شی پرته د الله پاك او د هغه د برحق رسول له رضا څخه.

**د (۲۹) لوست د تدریس لپاره لارښود پلان**

**د تدریس وخت (۱) درسي ساعت،**

**موضوع تاریخ**

| **د مطالبو سرلیکونه** | **د مطالبو شرح** | |
|---|---|---|
| **۱- د لوست موضوع** | آیا د حضرت عمر فاروق (رض) د خلافت په اړه معلومات لرئ؟ | |
| **۲- ښوونیزې موخې (پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي)** | له زده کوونکو څخه هیله کیږي چې د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي.<br>– د حضرت عمر فاروق (رض) له شجرې سره د زده کوونکو آشنا کېدل.<br>– د حضرت عمر فاروق (رض) خلافت ته د رسیدو له څرنګوالي سره د زده کوونکو آشنا کیدل.<br>– د حضرت عمر فاروق (رض) د خلافت د مهال له فتوحاتو سره د زده کوونکو آشنا کیدل.<br>– د حضرت عمر فاروق (رض) تر اسلامي حاکمیت لاندې قلمرو سره د زده کوونکو آشنا کیدل. | |
| **۳- د لوست ورکولو چلندونه** | فعال تدریس | |
| **۴- د لوست د ورانديې کولو اړین توکي** | د لوست کتاب، تخته | |
| **۵- د ارزونې چلندونه** | په تحریری او تقریری توګه | وخت په دقیقو |
| **۶- لومړنی کړنې** | ښوونکی سلام اچوي او د زده کوونکو د حال پوښتنه کوي. او د هڅونې په رامنځته کولو سره نوی لوست پیلوي. | ۱۰ دقیقې |

| وخت په دقیقو | د زده کوونکو د زده کولو کړنې | ۱-۲ د ښوونکی د لوست ورکولو کړنې |
| --- | --- | --- |
| ۳۵ دقیقې | – زده کوونکي يې په خپلو کتابچو کې ليکي.<br>– دوه تنه زده کوونکي په داوطلبانه توګه لوست له مخې لولي.<br>– زده کوونکي د ښوونکي ځوابونه خپلو کتابچو کې ليکي.<br>– زده کوونکي د خپل ښوونکي وينا ته غوږ نيسي. | – ښوونکی د لوست سرليک پر تخته باندې ليکي.<br>– ښوونکی د لوست متن د کتاب له مخې لولي.<br>– ښوونکی د زده کوونکو پوښتنو ته ځواب وايي.<br>– ښوونکی د اړوند لوست مهم ټکي تشريح کوي. |

**۷- د لوست د متن د پوښتنو ځواب:**

۱. حضرت عثمان (رض) د حضرت عمر په اړه وويل چې هغه سخت ګير دی، خو باطن يې له ظاهر څخه ډير ښه دی او زموږ تر منځ له هغه ښه نشته.

۲. حضرت ابوبکر صديق (رض) وويل: ما پر تاسو باندې عمر (رض) امير وګرځاوه که چيرې نيکي يې وکړه او د عدالت په لاره روان شو، دا هغه څه دي چې زه يې له هغه څخه هيله لرم او که چيرې ظلم او تيری يې وکړ او حق ته يې بدلون ورکړ، زه په غيب نه پوهيږم زما نيت خوښه دی او بيا د هر چا کړنې په هغه پورې اړوند دي. هغه وګړي چې ظلم کوي، زر ده چې پوه به شي چې له څه ډول سرنوشت او روزګار سره مخامخ دی.

۳. د نهاوند له سوبې وروسته دريم يزدګرد ماته وخوړه او د خراسان په لور وتښتيد، خو هلته د يوه خراساني ژرنده ګري له لوري ووژل شو. او مسلمانانو د نهاوند پر سوبې د فتح الفتوح نوم کيښود.

**۸- د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

حضرت عمر (رض) د خطاب زوی د مکې په يوې درنې کورنۍ کې د عام الفيل په ۱۳ کال وزيږيد په ۲۷ کلنۍ کې د اسلام په دين مشرف شو. دی يو پوه، ذکي، د بشري چارو او مسايلو لوی کار پوه او زړور انسان و. د حضرت نبي کريم (ص) د ژوند پر مهال نوموړي او حضرت ابوبکر صديق (رض) د وزيرانو په توګه د مسلمانانو په چارو کې دنده ترسره کوله.

د هجرت په دیارلسم کال د جمادي الاخر په میاشت کې د حضرت ابوبکر صدیق (رض) د وصیت سره سم د انصارو او مهاجرینو د پوهانو او مشرانو له خوا د مسلمانانو د دویم خلیفه په توګه وټاکل شو. د لسو کلو نه د ځه زیاتو خدمتونو او بې سارو بریاوو ترلاسه کولو وروسته د یوه خاین مجوسي له خوا چې بادار ته د کافي او عادلانه مالیې ورکولو څخه یې ډډه کوله، د شپې په تیاره کې په جومات کې په خنجر ټپي شو چې بالاخره د همدغو ټپو له امله درې ورځې وروسته په ۲۳ هجري کال د ذي الحجه الحرام په میاشت کې د شهادت لوړې مرتبې ته ورسید. او د حضرت نبي کریم (ص) او حضرت ابوبکر صدیق (رض) د متبرکو قبرونو ترڅنګ خاورو ته وسپارل شو.

د ده د خلافت لس کلنه دوره د اسلامي نړۍ لپاره د ویاړ له پلوه بې سارې دوره وه. ده په دې پیر کې فارس، شام او مصر په مکمله توګه فتح او د اسلام په نور روښانه کړل. حضرت عمر (رض) په اسلامي نړۍ کې د مسلمانانو په منځ کې د عدل او انصاف په تعمیل او تامین، په قول او عمل کې په رښتینولی او د حق او باطل ترمنځ په تفریق کولو د یوه بې مثاله قهرمان په توګه پیژندل شوی، چې له همدې امله ده ته د فاروق لقب ورکړل شوی دی. د ده په هکله به حضرت نبي کریم (ص) ویل چې ما به تل دا دعا کوله چې ای پاکه خدایه! ته اسلام ته د دغو دو عمرینو څخه یوه ته په اسلام راوړلو سره عزت ورکړه. چې له نیکه مرغه لوی څښتن د اسلام عزت عمر بن خطاب ته ورروبانبه. هغه کوم بې ساري او د فوق العاده قدر وړ چوپړونه چې نوموړي د تواضع او ځواك له مواضعو څخه د رعیت د آرامۍ او سوکالۍ لپاره کړي. د اسلام له صدر څخه تراوسه ساری نه لري او نه به یې په راتلونکې کې ولري. د ویلو وړ ده چې حضرت عمر (رض) په ټولنیزو چارو کې یو پیاوړی او ذکي کارپوه و، چې له همدې امله نورو ښارونو او هیوادونو ته د سفیر په حیث استول کیده.

**د (۳۰) لوست د تدریس لارښود پلان**

**د لوست ورکولو وخت: (۱) درسي ساعت**

**موضوع تاریخ**

| **د مطالبو سرلیکونه** | **د مطالبو شرح** | |
|---|---|---|
| **۱- د لوست موضوع** | آیا د حضرت عثمان (رض) د خلافت د دورې په اړه معلومات لرئ؟ | |
| **۲- ښوونیزې موخې (پوهاویزې، مهارتي، ذهني)** | له زده کوونکو څخه هیله کیږي چې د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي.<br>– د حضرت عثمان (رض) د زیږیدو له کال، ځای او شخصیت سره د زده کوونکو آشنا کیدل.<br>– د اسلام د لوړتیا په خاطر د حضرت عثمان (رض) له خدمتونو او سرښندنو سره د زده کوونکو آشنا کیدل.<br>– په اسلامي نظامي ځواک کې د سمندري ځواک له رامنځته کیدو سره د زده کوونکو آشنايي.<br>– د ده له هغه بې ساري خدمت سره چې قرآن کریم یې راټول کړ د زده کوونکو آشنا کیدل.<br>– او بالاخره د ده له سوبو سره د زده کوونکو آشنا کیدل. | |
| **۳- د لوست ورکولو چلندونه** | فعال تدریس | |
| **۴- د لوست د وړاندې کولو اړین سامان او لوازم** | د لوست کتاب، تخته، د عربستان نقشه | |
| **۵- د ارزونې څرنګوالی** | په تحریری او تقریری توګه | وخت په دقیقو |
| **۶- لومړنی کړنې** | ښوونکی سلام اچوي او د زده کوونکو د حال پوښتنه کوي او بیا د هڅونې په رامنځته کولو سره نوی لوست پیلوي. | ۱۰ دقیقې |

| ۱ - ۲ د ښوونکی د لوست ورکولو کړنې | د زده کوونکو د زده کولو کړنې | وخت په دقيقو |
|---|---|---|
| – ښوونکی د لوست سرلیک پر تخته باندې لیکي.<br>– ښوونکی د لوست متن د کتاب له مخې لولي.<br>– ښوونکی د زده کوونکو پوښتنو ته ځواب وايي.<br>– ښوونکی اړوند لوست توضیح کوي.<br>– ښوونکی د زده کوونکو زده کړه ارزوي. | – زده کوونکي یې په خپلو کتابچو کې لیکي.<br>– دوه درې تنه زده کوونکي په داوطلبانه توګه لوست د کتاب له مخې لولي.<br>– زده کوونکي د ښوونکي ځوابونه په خپلو کتابچو کې لیکي.<br>– زده کوونکي د خپل ښوونکي وینا ته غوږ نیسي. | ۳۵ دقیقې |

**۷- د لوست د متن د پوښتنو ځواب:**

۱. حضرت عثمان بن عفان (رض) یو رحیم، پرهیزګار او د سخي طبعې خاوند و چې د خپلې ټولې شتمنۍ کابو ټوله برخه یې د اسلام او مسلمانانو د لوړتیا، ودې او پرمختګ په لارې کې ولګوله او د بدر د غزوې پرته چې یو ډیر ستر مشکل یې درلود نور په ټولو غزواتو کې یې ګډون کړی دی.

۲. پاک قرآن د حضرت عثمان (رض) د خلافت په پیر کې راټول کړای شو.

۳. حضرت عثمان بن عفان (رض) دولس کاله خلافت وکړ.

**۸- د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

حضرت عثمان (رض) د عفان زوی او په ذی النورین ملقب، په حیا او سخاوت کې یې ساری نه درلود. ده ته د حضرت نبي کریم (ص) لور په نکاح وه او چې کله خو په خپل مرګ دغه بي بي وفات شوه، نو حضرت نبي کریم (ص) خپله بله لور ده ته په نکاح کړه. ځکه خو ذی النورین ورته ویل کیږي. حضرت رسول اکرم (ص) به د ده په شان کې ویل چې له حضرت عثمان (رض) نه په آسمان کې ملایکې حیا کوي. د اسلامي تواریخو په شهادت ام المومنین حضرت بي بي خدیجه الکبری (رض) او حضرت عثمان (رض) چې د اعرابو ډیر شتمن و کابو خپله ټوله شتمني یې د اسلام د لوړتیا او له بې وزلو انسانانو سره د مرستې په لاره کې ولګوله. ویل کیږي چې په ټولې مدینې منورې کې یوه څاه وه چې خوږې اوبه یې لرلې او د نورو څاګانو اوبه تروشې وې چې یولږ

ناروغتیاوې یې رامنځ ته کړې وې، د مدینې خلکو له حضرت عثمان (رض) نه وغوښتل چې د خوړو اوبو څاه کې چې د یوه ډېر ستر یهودي پانګه وال په واک کې وه، یوه سهمیه واخلي. حضرت عثمان (رض) د مسلمانانو دغې غوښتنې ته لبیک ووایه او له یهودي نه یې د پیسو په بدل کې د یوې ورځې غوښتنه وکړه، یهودي خو لومړی نه منله خو آخر یې داسې نرخ کېښود چې له حد او اندازې جګ و، خو سره د دې هم حضرت عثمان (رض) د مسلمانانو د سوکالۍ لپاره دغه شرط ومانه او مسلمانان یې د خوړو اوبو له نعمته برخمن کړل.بل موثق روایت داسې دی چې وایي یو کال په ټول جزیره العرب په تیره په مدینې منورې کې یوه بې سارې قحطي رامنځ ته شوه خلکو چې څه درلودل خرڅ یې کړل ترڅو ژوندي پاتې شي همدغه مهال آوازه شوه چې د حضرت عثمان غني د زرو اوښانو کاروان په غنمو، غوړیو، ممیزو او نورو خوراکي توکو بار مدینې ته راورسید. لویو پانګه والو له حضرت عثمان نه په پنځه چنده لوړه بیه د دغو خوراکي توکو د پیرلو غوښتنه وکړه، حضرت عثمان (رض) وویل چې په لس چنده یې خو لوی څښتن را نه غواړي نو سبا حضرت عثمان (رض) اعلان وکړ چې د حضرت عثمان دغه زر اوښه خواړه دې د الله پاک تر سپیځلې نامه جاروي، نو د مدینې په خوارانو او غریبانو یې دغه ټول خواړه هر چا ته د هغه د اړتیا په اندازه وویشل او په خلکو یې اختر جوړ کړ، وایي چې چا حضرت نبي کریم (ص) ته وویل چې تا دوه لوڼې حضرت عثمان ته یوه په بلې پسې ورکړې، نو حضرت نبي کریم (ص) په ځواب کې وویل: هغه خدمتونه چې حضرت عثمان (رض) مسلمانانو ته کړي که ما سل لوڼې درلودلای یوه په بلې پسې به مې ده ته په نکاح کړې وای.

**د (۳۱) لوست د تدریس لارښود پلان**

**د لوست ورکولو وخت (۱) درسي ساعت،**

**موضوع تاریخ**

| د مطالبو سرلیکونه | د مطالبو شرح | |
|---|---|---|
| ۱- د لوست موضوع | د حضرت علي کرم الله وجهه خلافت | |
| ۲- ښوونیزې موخې، (پوهنیزې، مهارتي، ذهني) | له زده کوونکو څخه هیله کیږي چې د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي.<br>– د حضرت علي کرم الله وجهه له نامه او قبیلې سره د زده کوونکو آشنا کیدل.<br>– د خلکو په منځ کې د حضرت علي کرم الله وجهه له شهرت سره د زده کوونکو خبریدل.<br>– له هغو جګړو سره چې د حضرت علي (رض) د خلافت په دورې کې پیښې شوې دي د زده کوونکو آشنا کیدل.<br>– د حضرت علي (رض) خلافت ته د رسیدو له څرنګوالي سره د زده کوونکو آشنا کیدل. | |
| ۳- د لوست ورکولو چلندونه | فعال تدریس | |
| ۴- د لوست د ورګندې کولو اړین توکي | د لوست کتاب، تخته، د عربستان نقشه | |
| ۵- د ارزونې چلندونه | په تحریري او تقریري توګه | وخت په دقیقو |
| ۶- لومړنی کړنې | ښوونکی سلام اچوي او د زده کوونکو د حال پوښتنه کوي او بیا د هڅونې په رامنځته کولو سره نوی لوست پیلوي. | ۱۰ دقیقې |

| ۱-۲ د ښوونکی د لوست ورکولو کړنې | د زده کوونکو د زده کولو کړنې | وخت په دقیقو |
|---|---|---|
| - ښوونکی د لوست سرلیک پر تخته باندې لیکي.<br>- ښوونکی د لوست متن د کتاب له مخې لولي.<br>- ښوونکی د زده کوونکو پوښتنو ته ځواب وايي.<br>- ښوونکی د اړوند لوست مهم ټکي تشریح کوي. | - زده کوونکي يې په خپلو کتابچو کې ليکي.<br>- دوه درې تنه زده کوونکي په داوطلبانه توګه د لوست موضوع د کتاب له مخې لولي.<br>- زده کوونکي د ښوونکي ځوابونه خپلو کتابچو کې ليکي.<br>- زده کوونکي د خپل ښوونکي وينا ته غوږ نيسي. | ۳۵ دقيقې |

**۷- د لوست د متن د پوښتنو ځواب:**

۱. حضرت علي کرم الله وجهه لومړنی ماشوم ؤ چې په لس کلنی کې د اسلام په مبارك دين مشرف شوی دی. ده په خلکو کې په ذکاوت، نياو، عدالت او د علمي شخصيت په توګه ډېر ښه شهرت درلود.

۲. د جمل جګړه په بصرې کې وشوه او په دې جګړه کې حضرت علي (رض) بريالی شو.

۳. خوارج هغه ډله وه چې سياسي، عقيدتي آندونه يې لرل او په اسلامي تاريخ کې يې ډېر ستر رول درلود. خوارج له هغه اوربند سره مخالف وو کوم چې حضرت علي کرم الله وجهه له حضرت معاويه (رض) سره وکړ. خوارجو په لومړي سر کې له حضرت علي کرم الله وجهه څخه په کلکه پلوي کوله.

**۸- د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

حضرت علي کرم الله وجهه يو پوه، فداکار، مهربان او زړه سواند شخص و. د مواخاتو د عقد په ورځ حضرت نبي کريم (ص) ده ته ښي لاس اوږد کړ او ورته يې وويل: ته زما ورور يې او دغه راز د ده په شان کې به حضرت رسول اکرم (ص) فرمايل حضرت علي کرم الله وجهه کوم کارونه چې د خپل عمر له لس کلنی څخه د اسلام د پياوړتيا او د مسلمانانو په چوپړ کې کړي دی د اسلامي تاريخ وياړ بلل کيږي. حضرت علي کرم الله وجهه يو ريښتينی انسان و او له خيانته يې ډېر بد راتلل.

ده به تل ویل چې د خدای دربار ته د دوو حالاتو په اړه په ژړا یم. د پاکو او رښتینو انسانانو لـه سـاده ګـی او بې هوشی او د متقلبو او خاینو اشخاصو له زیرکي او فراسته څخه. حضرت علي کـرم الله وجهـه بـه د مظلومـانو او بې وزلانو ډیره کلکه پلوي کوله. سوده د عماره لور چې د اشعت همداني لمسی او یوه زړه میرمن وه وایي چې زما د قبیلې خلك د صدقاتو یا مالیاتو د عامل د ظلم له لاسه ډیر په تنګ شول، نو زه حضرت علي کرم الله وجهه تـه پـه شکایت ورغلم چې د مالیاتو د مامور له ظلمه یې خبر کړم. دی په دې مهال په لمانځه لګیا و، کله چـې لـه لمانځـه وزګار شو نو په ډیرې مهرباني سره یې ماته وویل مورې له ما سره څه کار لرې؟

ما ورته وویل هو: او بیا مې د مالیاتو د مامور شکایت ورته عرض کړ، حضرت علي کرم الله وجهه پـه داسـې حالـ کې چې زما د شکایت په اوریدو سره یې سترګې له اوښکو ډکې او روانې وې ویل، ای زما پاکه ربه! ته پـر مـا او زما په مامورینو ښه خبر یې چې ما هغوی د دې دپاره نه دي مقرر کړي چې ستا د بنده ګانو په حق کـې دې ظلـم وکړي او یا د حق څخه انحراف وکړي بیا یې نو یو پوستکی راواخیست او په سر کې د بسم الله له لیکلـو وروسـته یې د (لاتفسدوا فی الارض بعد اصلاحها) مبارك آیت ولیکه او زیاته یې کړه کله چې دغه لیك اړونده مامور تـه رسیږي مامور به خپل کار نوي مامور ته پریږدي او همداسې هم وشول، څه موده وروسته نوی عامل راغی او موږ د زاړه عامل له شره د ده په مرسته او د الله پاك په پیرزوینې خلاص شولو.

**د (۳۲) لوست د تدريس لپاره لارښود پلان**

**د لوست ورکولو وخت (۱) درسي ساعت،**

**موضوع تاريخ**

| **د مطالبو سرليکونه** | **د مطالبو شرح** |
|---|---|
| **۱- د لوست موضوع** | د امويانو خلافت |
| **۲- ښوونيزې موخې (پوهنيزې، مهارتي، ذهني)** | – هيله ده د لوست په پای کې زده کوونکي لاندې موخو ته ورسيږي.<br>– د اموي دورې د امارت له پيليدا سره د زده کوونکو آشنا کيدل.<br>– د اموي لړۍ د بنسټ ايښودونکی له نوم، نسب او دزيږيدوله ځای سره د زده کوونکو آشنا کيدل.<br>– د حضرت رسول اکرم (ص) په زماني کې د حضرت معاويه (رض) له دندې سره د زده کوونکو آشنا کيدل.<br>– د حضرت معاويه (رض) له برياوو سره د زده کوونکو آشنا کيدل.<br>– د کربلا له غميزې او د نورو اموي خلفاوو له کارونو سره د زد کوونکو آشنا کيدل. |
| **۳- د لوست د وړاندې کولو چلند** | فعال تدريس |
| **۴- د لوست د وړاندې کولو اړين توکي** | د لوست کتاب، تخته، د آسيا نقشه |
| **۵- د ارزونې ځرنګوالی** | په تحريری او تقريری توګه |
| **۶- لومړنی کړنې** | ښوونکي سلام اچوي او د زده کوونکو د حال پوښتنه کوي او بيا د هڅونې په رامنځته کولو سره نوی لوست پيلوي. |

| ۱ - ۲ د ښوونکی د تدریس کړنې | د زده کوونکو د زده کولو کړنې | وخت په دقیقو |
|---|---|---|
| – ښوونکي د لوست سرلیک پر تختې باندې لیکي<br>– ښوونکي د زده کوونکو پوښتنو ته ځواب وايي.<br>– ښوونکي د اړوند لوست مهم ټکي توضیح کوي.<br>– ښوونکي د زده کوونکو زده کړه ارزوي. | – زده کوونکي يې په خپلو کتابچو کې لیکي.<br>– دوه دري تنه زده کوونکي په داوطلبانه توګه د لوست موضوع دکتاب له مخې لولي.<br>– زده کوونکي له ښوونکي پوښتنې کوي او ځوابونه خپلو کتابچو ته لیږدوي.<br>– زده کوونکي د خپل ښوونکي وینا ته غوږ نیسي. | ۳۵ دقیقې |

**۷- د لوست د متن پوښتنو ته ځوابونه:**

۱. حضرت معاویه (رض) د ابي سفیان زوی او د حرب لمسی دی. له هجرته ۱۵ کاله دمخه په مکې کې زیږیدلی دی، ۲۳ کلن و چې د حضرت نبي کریم (ص) له خوا د لیکنې دنده ورکړل شوه. په نظامي چارو کې يې ډیر لوړ استعداد درلود او په دې ډګر کې يې ستر ې بریاوې هم درلودې چې یو مثال يې د لومړی ځل لپاره اسلامي نظامي ځواکونه په سمندري ځواک سمبالول وو.

۲. دکربلا غمیزه د یزید د امارت پرمهال په ٦۱ هجري کال کې رامنځ ته شوه.

۳. بیلابیل لاملونه لکه د امارت موروثي کول، فساد او ډول ډول خیانتونو ته مخه کول د دی لامل وګرځید چې د امام حسین (رض) کورنۍ او د هغه ملګرې پاڅون وکړي.

**۸- ښوونکی لپاره اضافي معلومات**

حضرت معاویه (رض) ابن ابي سفیان (رض) که څه هم چې په سیاست کې يې یو لړ خطاګانې وکړې، خو په عین حال کې د لوړذکاوت او فراست خاوند هم و. ویل کیږي چې د ده د څمکې ترڅنګه عبداله بن زبیر (رض) هم یوه ټوټه ځمکه درلوده چې هلته د امیر معاویه مریانو او مزدورانو کار په کې کاوه اتفاقاً یوه ورځ دغه مزدوران د حضرت عبداله ابن زبیر (رض) په کرنیزې ځمکې کې داخل شوي و د دوی په دې کار عبداله ابن زبیر (رض) ډیر په غوسه شو او معاویه ته يې ولیکل.

اي معاويه! ستامريان زما په مزرعې کې ننوتلی او څه ورانی يې کړي دی. دوی منع کړه او کنه نو کار به يې بل ډول شي دغه ليک حضرت معاويه ته چې عملاً د څواک پر ګدۍ ناست و، ورسيد. ده دغه ليک ولوست او بيا يې يزيد ته ورکړ او ورته يې وويل: د دې ليک په ځواب کې څه کوې؟ يزيد وويل زما آند خو دا دی چې يو داسې لښکر د عبداله بن زبير په لور واستول شي چې د لښکر سر عبداله سره او پاي يې له تا سره وي معاويه ورته وويل له دې نه ښه څه هم کولای شو وروسته يې د عبداله بن زبير په ځواب کې وليکل اما بعد! کله چې زه د الله ج د رسول د حواری له موضوع نه خبر شوم ډېر خواشينی شوم. دنيا له ټولو سوکاليو سره ستا د رضا پر وړاندې ما ته هيڅ ده. زه ستا د خوښې لپاره له دې ځمکې تيريم او هغه مې له مريانو او ټولو اموالو سره تا ته دروبښله. څو له خپلې کروندې سره يې يو ځای کړې وسلام، معاويه. کله چې دغه ليک عبداله ابن زبير (رض) ته ورسيد نو په ځواب کې يې معاويه ته وليکل: د اميرالمومنين په ليکنې پوه شوم لوی څښتن دې د ده ژوند اوږد کړي او دده رايه دې ورکه نکړي. چې قريشوته درناوی کوي. وسلام. معاويه د ابن زبير (رض) ليک ولوست او ليک يې يزيد ته ورکړ، چې هغه يې هم ولولي. د يزيد د مخ رنګ د دې ليک له لوستو سره سم بدلون و موند. معاويه هغه ته داسې وويل. ای زما زويه! څوک چې عفو وکړي ښاغلی توب ګټې او څوک چې تواضع کوي درناوي يې کيږي.

**د (۳۳) لوست د تدریس لارښود د پلان**

**د تدریس وخت (۱) درسي ساعت**

**موضوع تاریخ**

| د مطالبو سرلیکونه | د مطالبو شرح |
|---|---|
| ۱- د لوست موضوع | **د امویانو را پرزیدنه** |
| ۲- ښوونیزې موخې (پوهنیزې، مهارتي، ذهني) | – هیله ده د لوست په پای کې زده کوونکي لاندې موخو ته ورسیږي.<br>– د امویانو د راپرزیدا له لاملونو سره آشنایي پیدا کړي زده کوونکي دې.<br>– د خراسانیانو او د هغو د مخکښو کسانو سره د زده کوونکو آشنایي.<br>– له اعرابو په تیره له عباسیانو سره د زده کوونکو آشنا کیدل.<br>– او بالآخره د زده کوونکو آشنا یي د اموي امراوو له تیروتنو سره. |
| ۳- د لوست د وړاندې کولو چلند | فعال تدریس |
| ۴- د لوست د وړاندې کولو اړین توکي | د لوست کتاب، تخته، د آسیا نقشه. |
| ۵- د ارزونې څرنګوالی | په تحریری او تقریری توګه |
| ۶- لومړنی کړنې | ښوونکي سلام اچوي او د زده کوونکو د حال پوښتنه کوي او بیا د هځونې په رامنځته کولو سره نوی لوست پیلوي. |

| ۱- ۲ د ښوونکی د تدریس کړنې | د زده کوونکو د زده کولو کړنې | وخت په دقیقو |
|---|---|---|
| - ښوونکي د لوست سرلیک پر تخته باندې لیکي<br>- ښوونکي د لوست متن دکتاب له مخې لولي.<br>- ښوونکي د زده کوونکو پوښتنو ته ځواب وايي.<br>- ښوونکي د اړوند لوست مهم ټکي تشریح کوي.<br>- ښوونکي د زده کوونکو زده کړه ارزوي. | - زده کوونکي يې په خپلو کتابچو کې ليکي.<br>- دوه تنه زده کوونکي په داوطلبانه توګه د لوست موضوع د کتاب له مخې لولي.<br>- زده کوونکي پوښتنې کوي او د ښوونکي ځوابونه په خپلو کتابچو کې ليکي.<br>- زده کوونکي د خپل ښوونکي وينا ته پاملرنه کوي. | ۳۵ دقيقي |

**۷- د لوست د متن پوښتنو ته ځوابونه:**

۱. ابو مسلم خراساني د خراسان (افغانستان) څخه و او له عباسيانو سره په همکارۍ يې د امويانو په وړاندې پاڅون ته لاره هواره کړه او تر هغه يې له جګړې لاس وا نه خيسته ترڅو چې يې خلافت رسماً عباسيانو ته وسپاره.

۲. د امويانو پرضد خوځښتونه په بيلابيلو سطحو او ليرې او نږدې سيمو کې پيل شوي وو.

۳. د امويانو وروستنی خليفه مروان نوميده او د مصر هيواد ته نږدې د بوسير په کلي کې ووژل شو.

**۸- ښوونکی لپاره اضافي معلومات**

د حضرت معاويه (رض) پلار حضرت ابو سفيان او نيکه يې حرب نوميده. د غه کورنۍ له اقتصادي او ټولنيزه پلوه په مکې کې يوه نوميالۍ او ځواکمنه کورنۍ وه. دغې کورنۍ د مکې د خلکو د مشرۍ حق هم ځانته ساتلی و.

دا چې حضرت معاويه (رض) او دده پلار ابوسفيان د اسلام په مبارک دين باندې تر مشرفيدو يعنې د مکې له سولې او فتحې څخه دمخه څه کړيدي هغه د تاريخ بيل بحث دی.

دلته موږ د حضرت معاويه ( رض) او ددغې کورنۍ هغه کړنې جاجوو کوم چې ددغې کورنۍ واکمنانو تر اسلام راوړو وروسته کړيدي. حضرت معاويه (رض) په هغه مهال کې چې حضرت عثمان (رض) د امير المومنين په توګه په مدينې منورې کې د چارو سمبالښت په غاړه درلود په دمشق کې د والي په حيث دنده ترسره کوله او بيا کله چې حضرت عثمان (رض) په مدينې منورې کې په شهادت ورسيد او حضرت علي کرام اله وجهه د انصارو او

مهاجرو (کډوالو) په سلا سره د مسلمانانو د امیر په توګه غوره شو، نو حضرت معاویه (رض) د ځینو دلایلو د توجیه کولو پر بنسټ په دمشق کې د والي توب چاروته دوام ورکړ. او حضرت علي کرام اله و جهه سره یې د بعیت نه هم ډډه وکړه. او په دمشق کې یې ځان د امیر المومنین په توګه معرفي کړې ده د خپل امارت په څه باندې شل کلنې دورې کې نظامي پیاوړتیا ته مخه کړه، سمندري پیاوړی ځواک یې رامنځته کړه او دغه راز نظامي کلاګانې یې سرتیروته جوړ کړې.

معمولاً نظامي برخې ته د امویانو په دورې کې پوره پاملرنه وشوه، یو شمیر ستر پوځي مشران چې په نړیواله کچه پیژندل شوی و لکه موسی بن نصیر، محمد بن قاسم او قتیبه او داسې نور رامنځ ته شول، موسی بن نصیر د اموی فتوحاتو لمن تر هسپانیې ورسوله او محمد بن قاسم د اموی دولت د سرتیرو مشر تر کراچۍ پورې خپله د سوبو او فتوحاتو لمن وغزوله او قتیبه په منځنۍ اسیا کې سوبې وکړې.

په اموي دورې کې حضرت عمر بن عبدالعزیز (رض) ډیره هڅه وکړه چې قولاً او عملاً د راشدینو خلفاؤ رضی اله تعالی عنهم په شان دخپل امارت چارې تر سره کړی. ده د حضرت رسول اکرم (رض) کورنی، خپلو خپلوانو او حضرت علي کرام اله وجهه ته پوره درناوی درلود او ټول هغه څه یې چې د حضرت علي کرام اله وجهه په ضد ویل کیدل بند کړل او له همدې امله یې یو زیات شمیر خلکو ته سزاوې هم ورکړې، حضرت عمر بن عبدالعزیز (رض) ته په اسلامي نړۍ کې په ډیره درنه سترګه کتل کیږي. دغه راز په اسلامي او غیر اسلامي تاریخونو کې له ډیر اوچت او واقعاً انساني دریځ او موقف څخه برخمن دی چې انسانیت ورباندې ویاړي، د اموي کورنۍ حاکمانو د حضرت عمر بن عبدالعزیز (رض) نه پرته هر یوه یې څه ناڅه اشتباه ګانې هم لرلې چې بالاخره په اسلامي نړۍ کې یې پراخو پاڅونو لکه د عباسیانو، علویانو، خراسانیانو او نورو ته لاره پرانیستله.

دغې کورنۍ چې بنسټ ایښودونکي یې امیر معاویه (رض) و کابو ۹۲ کاله په اسلامي نړۍ کې د امارت چارې په لاس کې درلودې او چې کله خو په ۱۳۲ هجري کال ددې کورنۍ وروستنی خلیفه مروان د عباسیانو د ځواکونو لخوا مصر ته په نږدې سیمې کې ووژل شو نو له دې سره د اموي کورنۍ د امارت ټغر هم ورټول او په بدله کې ابوالعباس سفاک د ځواک پر ګدۍ کیناست او په دې توګه اسلامي امارت له اموي کورنۍ عباسي کورنۍ ته ولیږدید.

**د (۳٤) لوست د تدریس لارښود پلان**

**د تدریس وخت: (یو ساعت)**

**مضمون: تاریخ**

| **د مطالبو سرلیکونه** | **د مطالبو شرح** | |
|---|---|---|
| **۱- د لوست موضوع** | له امویانو څخه عباسي کورنۍ ته د څواک لیږد | |
| **۲- ښوونیزې موخې (پوهنیزې، مهارتي، ذهني)** | له زده کوونکو څخه هیله کیږي چې د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي.<br>– د خراساني ابومسلم له شخصیت سره د زده کوونکو آشنا کیدل.<br>– د ابوالعباس سفاک له کړنو سره د زده کوونکو آشنا کیدل.<br>– له عباسي پیژندل شویو څیرو سره د زده کوونکو آشنا کیدل.<br>– د عباسي کورنۍ د واکمنۍ له دورې سره د زده کوونکو آشنا کیدل. | |
| **۳- د تدریس چلند** | فعال تدریس | |
| **۴- د لوست ورکولو اړین توکي** | د لوست کتاب، تخته، د نړۍ یا د آسیا نقشه. | |
| **۵- د ارزونې څرنګوالی** | په تحریری او تقریری توګه | وخت په دقیقو |
| **۶- لومړنی کړنې** | : ښوونکی سلام اچوي او د زده کوونکو د حال پوښتنه کوي او بیا د هڅونې په رامنځته کولو سره نوی لوست پیلوي. | ۱۰ دقیقې |

| ۱-۷ د ښوونکی د لوست ورکولو کړنې | د زده کوونکو د زده کولو کړنې | وخت په دقیقو |
|---|---|---|
| – ښوونکی د لوست سرلیک پر تخته باندې لیکي.<br>– ښوونکی د کتاب له مخې اړوند لوست لولي.<br>– ښوونکی د زده کوونکو پوښتنو ته ځواب وايي.<br>– ښوونکی د اړوند لوست مهم ټکي توضیح کوي.<br>– ښوونکی د زده کوونکو زده کړه ارزوي. | – زده کوونکي يې په خپلو کتابچو کې لیکي.<br>– دوه درې تنه زده کوونکي په داوطلبانه توګه د لوست موضوع د کتاب له مخې لولي.<br>– زده کوونکي د ښوونکي ځوابونه خپلو کتابچو کې لیکي.<br>– زده کوونکي د خپل ښوونکي وینا ته غوږ نیسي. | ۳۵ دقیقې |

**۷- د لوست د متن پوښتنو ته ځواب:**

۱. ابوالعباس سفاح بن عبدالله بن علي يو وينه تويوونکی او ظالم سړی و، کابو د اموي کورنۍ ټول غړي يې ووژل، پلار يې له امويانو سره په مخالفت کې ډير زحمتونه تير کړل.

۲. خراساني ابومسلم د ابوجعفر منصور د خلافت په دوره کې ووژل شو.

**۸- د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

عباسيانو چې په لومړي سر کې اسلام ته د چوپړ او د قرآني احکامو او د حضرت نبي کريم (ص) د شريعت د هراړخيز تطبيق تر شعار لاندې په کار پيل وکړ. ورو ورو يې دنيوي ژوند- عيش او عشرت او له اسلامي آرونو او بنسټونو نه د واټن اخيستلو لور ته مخه کړه. دوی هغو کسانو ته چې د هغوی په مټ واکمنۍ ته رسيدلي وو، د دښمن په سترګه کتل. د ابومسلم خراساني وژل، د برمکي کورنۍ له منځه وړل او يولړ نور کارونه چې له اسلامي سپيڅلتيا سره يې اړخ نه لګاوه. دا ټول د دې لامل شول چې دغه کورنۍ له ماتې سره مخامخه شي. کله چې چنګيز پر بغداد يرغل وکړ او د دې کورنۍ وروستنی خليفه يې وواژه نور د تل لپاره د عباسيانو د امارت ټغر ټول شو.

**د (۳۵) لوست د تدریس لاربنود پلان**

**د تدریس وخت (یو ساعت)**

**مضمون: تاریخ**

| **د مطالبو سرلیکونه** | **د مطلب شرح** | |
|---|---|---|
| **۱- د لوست موضوع** | د عباسیانو د راپرزیدا لاملونه | |
| **۲- ښوونیزې موخې (پوهنیزې، مهارتي، ذهني)** | له زده کوونکو څخه هیله کیږي چې د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي.<br>– له مامون او د هغه د ځواک ته رسیدو له څرنګوالي سره د زده کوونکو آشنا کیدل.<br>– د طاهر فوشنجي له کړنو سره د زده کوونکو آشنا کیدل.<br>– د عباسیانو د راپرزیدا له لاملونو سره د زده کوونکو آشنا کیدل.<br>– د عباسیانو د وروستني خلیفه د راپرزیدا له څرنګوالي سره د زده کوونکو آشنا کیدل. | |
| **۳- د تدریس چلند** | فعال تدریس | |
| **۴- د لوست ورکولو اړین توکي** | د لوست کتاب، تخته، د نړۍ نقشه. | |
| **۵- د ارزونې څرنګوالی** | په تحریري او تقریري توګه | وخت په دقیقو |
| **۶- لومړنۍ کړنې** | ښوونکی سلام اچوي او د زده کوونکو د حال پوښتنه کوي او بیا د هڅونې په رامنځته کولو سره د نوي لوست پیل کوي. | ۱۰ دقیقې |

| ۱-۲ د ښوونکی د لوست ورکولو کړنې | د زده کوونکو د زده کولو کړنې | وخت په دقیقو |
|---|---|---|
| – ښوونکی د لوست سرلیک پر تخته باندې لیکي.<br>– ښوونکی د کتاب له مخې اړونده لوست لولي.<br>– ښوونکی د زده کوونکو پوښتنو ته ځواب وايي.<br>– ښوونکی د زده کوونکو زده کړه ارزوي. | – زده کوونکي يې په خپلو کتابچو کې ليکي.<br>– دوه درې تنه زده کوونکي په داوطلبانه توګه د لوست موضوع د کتاب له مخې لولي.<br>– زده کوونکي د ښوونکي ځوابونه خپلو کتابچو کې ليکي.<br>– زده کوونکي د خپل ښوونکي وينا ته غوږ نيسي. | ۳۵ دقيقې |

**۷- د لوست د متن پوښتنو ته ځواب:**

۱. لومړني مخالفتونه د ابوجعفر منصور د واکمنۍ پر مهال راڅرګند شول. يمنيانو، علويانو او عباسيانو په پټه خوځښتونه پيل کړي وو، دغه کړنې د امين الرشيد په زمانه کې اوج ته ورسيدې.

۲. فوشنجي طاهر د امين او مامون په مخالفتونو کې د مامون پلوی و، چې د امين مور عجمه وه، نو ځکه له غير عربو سره يې دوستانه اړيکې ټينګې کړې وې او دويم دا چې په خپله مامون هم يو پوه او زيرک سړی و.

۳. د عباسيانو د راپرزيدا مهم لاملونه پر ملت باندې تيري، بې عدالتی، بې کفايتي، فساد، اخلاقي نيمګړتياوې، د پياوړي مرکزيت نشتوالی او د چارو د عواقبو نه سنجول و.

**۸- د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

له هغه وروسته چې عباسيانو د خلافت د چارو واګې ترلاسه کړې، نو د دې لړۍ مشر ابوالعباس سفاح د جمعې د لمانځه د مخه خطبه وويله او داسې يې څرګندوله چې دی سل په سلو کې د حضرت رسول اکرم (ص) سنت ادا کوي. خلکو ددغه کار هرکلی وکړ. ابوالعباس سفاح د ځواک پر ګدۍ تر کيناستو وروسته پر امويانو ډير تيری وکړ. له ده وروسته د ده ورور ابوجعفر منصور هڅه وکړه چې د هيواد چارې سمبال کړي، کارپوه مامورين وګماري او ټولنيز عدالت ټينګ کړي. په هر صورت د عباسيانو دوره د تمدن، علم او ښوونې او روزنې د پاللو له پلوه په خپل اړوند عصر کې بې سارې دوره بلل کيږي. د ښوونې او روزنې د مرکزونو رامنځ ته کول په تيره د بغداد د نظاميې، ساعت جوړولو، قطب نما جوړولو او تر دې سربيره د يوه ستر علمي، معرفتي، صنعتي، معماري، نقاشي او څيړنيز مرکز په توګه د بغداد راڅرګنديدنه د نړۍ په کچه هغه څه دي چې اسلامي نړۍ ورباندې تر ننه پورې وياړي چې په دې کې د هارون الرشيد او ځينو نورو برخه لکه د لمر په شان څرګنده او ښکاره ده.